



# کتاب پېژندنه

دکتاب نوم: دا لېونے لېونے ګرځه

د شاعر نوم: عزيز مانېروال

خوروونکې: قام قلم ـ صوابي

د چاپ کال: اپريل ۲۰۰۹

تعداد : ۱۰۰۰ ټوکه

بيه: ۲۰۰ روپۍ

کمپوزر: ذبيح الله

سرپاڼه: يار محمد ترکي ـ کمال

چاپځې: دانش کتابتون، قصه خواني پېښور

د کتاب د موندلو درک:

۱ ـ يونيورسټي بک ايجنسي، پېښور

۲ ـ دانش کتابتون قصه خواني، پېښور

۳ ـ کالج بک ايجنسي، شعيب نيوز ايجنسي، صوابي

ډالۍ

# د اکمل لېونی په نوم

چې له د ښځاري غونډې د پښتو په لارو کوڅو، پولو پټو، غرونو غارو د پښتو او پښتو د سرلوړي د پاره ګرځي.

# مــــور تهٔ

زما مورې که پهٔ کور وې کهٔ په ګور ئې
ستا د پاکې مينې پور دے پهٔ ما پورې

# مننه

زهٔ د خپل قدرمن او خواخوږي ملګري

## ښاغلي ماجد خان (باجا_ صوابی)

ډېر ممنون یم چې د امریکا (بوسټن) پهٔ تېز او
رنګین ژوند کښې د خپلې مور ژبې پښتو سره د
مینې او پت پالل‌لو پهٔ توګه زما د کتاب د چاپولو ضد
ترسره کولو سره دا ثابته کړه چې پهٔ رښتیا د
باکو خان نمسے دے.

عزیز مانیروال

# سریزه

خلیل جبران وائي "زۀ داسې رباب یم چې د قوت ګُل لاس مې تنګوی یوه داسې شپېلۍ یم چې د دغه لوئۍ ذات ساه زما پۀ ذات کښې زما خې راخی:"
او دې وخت چې زۀ د کوم تخلیق کار د فن پۀ حقله خپلو لوستونکو سره خبره کوم، نو پۀ هغۀ هم لوېې ذات دغه پیرزوینه کړې ده، ځکه خو هغه وائی کنه چې

زما خالق زما اشنا دے سر پې مه خوږوه

د پښتون رومانس ډکه دغه سندره چې اساس ئې تپه ایز او انداز ئې سندریز دے، د یو داسې شاعر د احساساتو هینداره ده چې هم خپل اولس او هم خپلې خاورې سره لېونۍ مینه لری، هم د جذبې اور او هم د خیال مستی لری، هم ئې سیاسی روزنه شوې ده او هم د وطن د درخو پۀ مینه کښې د وطن پۀ غرونو، رغو، کلو او کوڅو کښې لېونے لېونے ګرځېدلے دے.
زما پۀ خیال دا شاعری الهامی شاعری ده، خو زۀ چې د کوم الهام خبره کوم، نو دا آسمانی الهام نۀ دے، د دغه الهام سرچینه د پښتونخوا غرونه، ګلدرې، دا کانی او دا کوڅې دی. د دغه الهام سرچینه د شاعر مېړنے ثقافت تاریخی خاوره او اولس دے. اوس کۀ د مزکې د دغه ښکلاګانو، د دغه جمال او جلال آسمان سره څۀ تړون او څۀ رشته وی، نو بیا دا الهام آسمانی هم دے او بیا مونږ دا ونیلے شو، چې زمونږ شاعر د

لوئي ذات شاګرد دے او لکه د جبران دا دعوی کولے شي چې زۀ داسې رباب یم چې د قوت کل لاس مې تنګوی:

چا چې هم د هغۀ سندریز غزلونه، لوبې او نظمونه اوربدلی وی، نو دا به ئې ارومرو محسوس کړی وی، چې دغه هم د ابشار ترنم لری او هم د تورانکی د نغمې درد، هم د غرۀ د تپې مستی لری او هم د مېچجن د غرار خوارۀ. لکه د غرۀ د اوبو رنه او د هر قسمه کثافت نه پاکه دغه شاعری چې هم لکه د چړ د اوبو بهانده بهېږی او هم پۀ خپل ذات کښې پرېوانه خوارۀ، نرمې او مینه لري او دا ځکه چې شاعر ئې تنګیالے دے، خو جنګیالے نه دے او دا ځکه چې دغه شاعر پۀ روحانی توګه آباد او پۀ فکری توګه مظبوط دے، چې پۀ کومه شاعرۍ کښې د وطن توتان، مېږې، خاروګانې او شوملې هم خپل ځانونه پۀ دومره فطری انداز ښانې کړی، چې پکښې د پښتنو زلمو ارمانونه او امیدونه هم لکه د ستورو ځلېږی او چې پرې د پښتون جانان سُور سالو او سره لوپټه هم خوره وی او چې پۀ خپل هر لفظ او هر حرف کښې د بلبلو، تاروګانو او تورانکو د سندرو موسیقیت او غنائیت لری، نو داسې شاعر کۀ دې د کمپیوټر او ټیکنالوجۍ دور کښې هم د زرګونو زلمو پۀ زړونو حکمرانی کوی او هغوئ ئې د ځان سره شعرونه پۀ موبائلو کښې خوندی کوی، نو دا څۀ ناشونی او ناویاته خبره نۀ ده. داسې شاعری چې د فوکلور درجې ته رسېدلی وی نه څوک هېرولے شي او نۀ ئې وخت د پښو لاندې کولے شي. ترڅو چې پښتون ژوندے وی او ترڅو چې پښتو ژوندۍ وی، تر هغې به د عزیز سندرې هم ژوندۍ وی او هم دغه شان به د امید او پښتون رومانس خوارۀ پۀ منګلو منګلو وېشی.

هغه اکثر په محفل کښې دا خبره کوی، چې زهٔ شاعر نهٔ یم او دا چې څهٔ مې لیکلی دی، دا شاعری نهٔ ده، بس هسې مې د ځان لپاره څهٔ ګډې وډې وئیلی دی. البته د هغهٔ دا خیال دے او دا خیال ئې څهٔ دومره بې ځایه هم نهٔ دے، چې هغه یو متحرک او Committed سیاسی ورکر دے او په دې خبره فخر هم کوی چې د عدم تشدد د مبلغ بابا مریدی ئې په شعوری توګه قبوله کړې ده. دغه فلسفه ئې فنکار روح ته داسې ورکوزه شوې ده، چې رومانس هم کوی، نو د ملی وحدت او ملی روحیې خواږهٔ پکښې موجود وی.

د پنجابی په ژبه نهٔ پوهېږی
زما مور ماله کابلی غواړی

د سیاسی ورکری دغه دعوی ئې هم بې ځایه نه ده. خو زما خیال دے چې د هغهٔ د انفرادیت او هر دلعزیزی لویه حواله د هغهٔ شاعری ده. کهٔ مونږ د هغهٔ د ذات نه شاعری لرې کړو، نو بیا زمونږ په لاس یو داسې پرجوش سیاسی ورکر راځی، چې تل ئې د قام د شتهٔ کېدو، یو کېدو او سوکالی خوبونه لیدلی دی. ددغه خوبونو په تعبیرونو پسې ئې لېونی منډې او جلی وهلی دی، خو د هغهٔ او د هغهٔ د یو تولګی ملګریو هر خوب اپوته تعبیر راوړے او ورکړے دے. د شناخت او سوکالی په دغه تاروګو پسې چې هغوئ کله هم ګوتې ګرځولی دی، نو د وخت کاریزو ئې تول لاسونه وینې کړی دی، خو په لاس ئې هیڅ نهٔ دی راغلی.

خپل زړونه ئې لمبه لمبه کړی دی، د خپلو بچو ارمانونو باندې ئې سترګې پتې کړی دی، خو دا دے د درې کم پنځوسو کالو په عمر کښې هم خالی لاسونه ولاړ دے او دا ځکه چې د

وخت پهٔ منډهې. کښې سیاست د قام لپاره نه، د خان لپاره کېږي. د نن سیاسي فضا دومره polluted شوې ده، چې د قام او جهان خبره بس یو خوب او خیال دے. دا ګېنتمي اوس تش د خانه چاپېره چورلي، بنهٔ پهٔ نره پکښې دروغ وئیلے شي او عزیز د دروغو او بې ایمانۍ پهٔ پوله هم نهٔ دے تېر شوے، خکه زه وایم چې عزیز کهٔ منفرد دے، هغه کهٔ د زلمو د زړهٔ درزا دے، عزیز کهٔ عزیز دے، نو دا خکه چې هغه د خپل مور ژبې ډېر خوږ او منفرد شاعر دے. عزیز کهٔ اولسي شاعر نه دے، نو د اولس شاعر ارومرو دے او کهٔ هغه دا وائي چې زهٔ شاعر نهٔ یم، نو دا څه نوې خبره نهٔ ده. د نړۍ اکثرو لویو او مقبولو شاعرانو خپله شاعري Disown کړې ده، هغه کهٔ خوشحال بابا دے او که اقبال او کهٔ مرزا غالب.

لکه غالب وائي:

سو سال سے ھے پیشه آبا سپه گری
کچھ شاعری ذریعه روزگار نهیں مجھے

حالانکې د دغه ټولو نوم او مقام هم د خپلې شاعرۍ پهٔ سبب ژوندے دے. عزیز کهٔ خوشحال او اقبال نهٔ دے، خو د خپل دور یو مقبول شاعر ضرور دے، نو خکه پکښې دغه احساس محبوبیت شته، خو لکه څنګه چې هغه خپل جانان ته وائي:

خیر دے د بل چا نه پوښتنه اوکړه
زما بر پتونه ستا بانه ښکلي دي

نو مونږ ورته هم وایو چې کهٔ ته نې نهٔ منې نو خیر دے، د بل چا نه پوښتنه اوکړه، چې عزیز شاعر دے او کهٔ نه؟ او کهٔ دے، نو څنګه شاعر دے؟

ګو چې هغهٔ سره د خپلو ملګریو اکثر پهٔ سیاسي محاذ ماتې

خوړلې ده او د خپل غرض سر کېدو نه پس سیاسي پنډتانو هغوئ د خپل خیالي ریاست نه لکه د افلاطون لغ اوباسلې دي، خو خپل سیاسي فکر او آدرش فنکار عزیز له ډېر څۀ ورکړي دي، ځکه خو هغه د مضبوطې عقیدې سره په خپلو روایاتو او مقدساتو کلک ولاړ دے او د خپل ذات دغه مضبوطو ستنو هغه د یو انسان په حیث دومره مظبوط کړے دے، چې چرې هم د وخت او حالاتو جبر ته سلامي شوے نۀ دے، ځکه خو د دومره اوږدې بې روزګارۍ او پریوانه معاشي مسئلو باوجود مونږ د هغۀ په شاعرۍ کښې د مایوسۍ، بې وسۍ او بې ارزۍ د تیارو په ځائې د امید او همت رڼا وینو.

هغۀ چرې هم ځان مظلوم نۀ دے ګڼلے، ځکه خو ئې د هر قسمه حالاتو ښه په نره سینه ډال نیولې ده او ځکه د خپلو الهامي سندرو په ذریعه په پښتون وطن او پښتنو زلمو د امید، مینې، همت او پښتون رومانس خوارۀ وپشي او هم دغه وجه ده، چې د هغۀ هر دویم، دریم غزل او لوبه د فوکلور درجې ته ځان رسوي. هغه د یو انسان په حیث د خپل دور د هر نر، ښځه او قام پرست قلمکار سندرې خوښوي او دغه قامي جدوجهد ئې قدروي خو د فنکار په حیث ئې انداز او اسلوب د هر چا نه بېل دے.

د هغه ځینې انقلابي او مزاحمتي نظمونه د هغه زماني پیداوار دے، چې کله هغه یو پرجوش انقلابي وو. پالیش، پالیش، دا ماشوم او ځینې نور ددې انداز او مزاج نور نظمونه او قطعې په دغه پرجوش دور کښې لیکلے شوي دي، خو دغلته هم د هغۀ انداز او اسلوب دا ښائي چې سرے محض ناره نۀ وهي، پکښې دننه یو جذباتي فنکار او میچور انسان پټ دے. د هغه روح کښې ناست

دغـه جـذباتي فنکـار او ميچـور انـسان ډېر زر د نـړۍ پـه مـخ بدلېدونکي حـالات او خيـالات محسـوس کـوي او پـه ډېر جانانـه انداز ئې د وخت قدم سره قدم ايښود ے د ے.

د معروضـي او بدلېـدونکو حـالاتو ادراک پـه خپـل ځـائې خـو د خپـل کلچـر، خپلې عزيزولـۍ او ددغـه کلچـر د سپېڅلو روايـاتو پـه حقلـه هغـه د يـو مخصـوص قـسمه بنيـاد پرسـتۍ ښکار د ے او دغـه بنيـاد پرسـتي د خپـل فـن پـه دغـه دواړو دورونـو کـښې د هغـهٔ د ذات د ټولو نـه غټه حواله هم ده او سرمايه هم.

د هغـهٔ سياسـي فکـر هـم د هغـهٔ پـهٔ شـعر کـښې هلـه ځـائې مونـد ے د ے، چـې د هغـهٔ پـهٔ روح کـښې ناسـت ميچـور فنکـار ورتـه ښـهٔ پـهٔ مينـه هـرکلے وئـيلے د ے. زهٔ د هغـهٔ د اکثـرو غزلـو او لوبو د کيفيت او شاعرانه موډ ګواه هم يم او ږومبنے سامع هم.

کلـه کلـه خـو داسـې شـوي دي، چـې هغـهٔ پـهٔ مـودو مـودو يـوه مـصرعه هـم نـهٔ ده ليکلې او کلـه چـې موډ جـوړ شـوے دے او پوره پوره غزل ئې ليکلے د ے.

لمحـاتي مـسئلې چـې پـهٔ مـودو مـودو د هغـهٔ پـهٔ روح کـښې واوړي راواوړي او دتنـه ناسـت فنکـار ئـې قبـول کـړي، نـو بيـا چرتـه يـو شـعر کـښې ځـان ځـائې کـړي او دا ځکـه چـې هغـه يـو فطـري شـاعر د ے او دا ځکـه چـې هغـه د يـو انـسان پـهٔ حيث د وخـت يـو ويښ او بيدار وګـړے د ے، يـو داسـې وګـړے چـې هـم ئـې د وخـت پـهٔ نبـض ګـوتې ايښـودې دي، هـم د خپـل ماضـي نـه خبـر د ے او هـم د مـستقبل ادراک او شـعور لـري، خـو لکـه د ځنـو خلقـو پـهٔ هـوا کـښې مرغـان نـهٔ نيـوي او نـهٔ پـهٔ الوتونکـو پـسې بـې سـمې الـوځي، بلکې خپـل ځـان او معروضـي حـالات هـره لمحـه او هـر وخـت پـهٔ نظـر کـښې سـاتي.

د هغهٔ نـږدې ملګـرې خبـر دی، چـې هغـه د شـاعرۍ نقـاد نـهٔ منـي، خـو خپلـه پکښې یـو غـټ او میچـور نقـاد ناسـت د ے. دلتـه هم هغـهٔ سـره هغـه لوبـه شوې ده، کومـه چې افـلاطـون سـره شـوې وه. هغـهٔ وې زمـا پـهٔ تـصـوراتي او مثـالي ریاسـت کـښې بـه شـاعر نـهٔ وی، ولې خپله چې ئې کوم کتاب لیکلے د ے، هغه شاعري ده.

مـا چـې ورتـه یـو ورځ اووې، چـې څـوک تنقیـد نـهٔ منـي، هغـه د خـان نـه هوښیـار کـس نـهٔ منـي، نـو زمـا ددې خبـرې پـهٔ جـواب کـښې هغـهٔ اووې: هـر څـهٔ چـې وی خـو شـاعري، تـه د نقـاد ضـرورت نشـته او زهٔ د غـه وخـت لکـه د جـان بهـادر لالا او انـور مـانیروال رو غونـده غلے شـوم، ځکـه چـې زمـونږ د غـه نیـازبین شـاعر ډېـر خـوږ، ډېـر نـر او مـونږ تـه ډېـر عزیـز د ے. دومـره، چـې مـونږ ئـې پـهٔ تنـدی یـوه ګونجه هم نهٔ شو لیدلے.

او اوس کـهٔ مـو خوښـه وی، نـو زهٔ بـه د خپـل اشنا ددغـه خـوږې، منفـردې او ژونـدی شـاعرۍ نـه د خپلـې خوښـې څـو شـعرونه ستاسـو پـهٔ وړانـدې د تبرک لپاره کېږدم او بیا بـه ستاسـو او شـاعر د مېنـځ نـه اوځم، ځکه چې هسې نهٔ تاسو مې پهٔ زور دې محفل نه اوباسئ:

که دی د سمې کهٔ د غرهٔ ښکلی دی
ټوله دنیا کښې پښتانهٔ ښکلی دی
وطـن تـه راشـه مـسافره اشـنا
دلتـه هـوا دلتـه اوبـهٔ ښـکلی دی
خیر د ے د بل چا نه پوښتنه اوکړه
زما برېتونه، ستا بانهٔ ښکلی دی.

نورالامین یوسفزے
شاه منصور
۲۵ مارچ ۲۰۰۹

# د پېژندلی پېژندګلو

څهٔ کم و زیات شپږ کروړه پښتنو کښې به لږ پښتانهٔ وی، چې هغه به عزیز مانیروال نهٔ پېژنی. د خوږهٔ شعرونو زمزمې ئې د موسیقۍ پهٔ سرونو او د ښاغلو ګلزار عالم، سردار علی ټکر، هارون باچا، کفایت شاه باچا، سرفراز، ظفر اقرار، نغمې، ورمې او ګوهر جان پهٔ خوږهٔ اوازونو د هر پښتون غوږ ته رسېدلی دی. لکه داسې به څوک وی، چې دا غزل ئې نهٔ وی اورېدلے:

شيخ پهٔ غلطه دے خطا دے سر پرې مهٔ خوږوه
زما خالق زما اشنا دے سر پرې مهٔ خوږوه

او دغسې پهٔ شلګونو سندرې او غزلونه نور هم. خبره د پېژندګلو لیکلو نهٔ وه، خبره پهٔ کتاب کښې زما د حاضرۍ لګولو وه او زهٔ دا اعزاز ګڼم چې پهٔ موجوده وخت کښې د پښتو ژبې پهٔ څو مستندو او هر دلعزیزه شاعرانو کښې پهٔ یو پاندې خپله رائې لیکم.

عزیز مانیروال لهٔ خدائې پاک خپسته خوانی، ښکلے قد

کاټ او درونـد اواز ورکـړے دے. دغـه وجـه وه، چې پـۀ رسېدلې خـوانۍ کـښې ئـې توجـه پـۀ فلمونـو وه او ځـان بـه ورتـه هېرو ښکارېدو او ورسره ئې پـه فلـم کـښې د پـۀ طـور د هېـرو راتلـو خوبونـه هـم لـیـدل. دا خـو د آصـف خـان خـدائې څـۀ پـورې ایستې وو، چې ګلـزار شـاه دغـه ښـاغلے د زیـدې د نعـیـم لالا سـره معرفـی کـړو. نعـیم لالا ورلـه پـۀ دمـاغـو کـښې د ترقـی پسـندۍ، طبقـات لـوړو ژورو او د سـماجی انقـلاب د پورتـه کېـدو داسـې دهمـاکې وکـړې، چـې دے خـو پـۀ ځـان پوهـېـدو نـو د سـطحی سـوچونو نـه د خـوارۍ کـښو او محـنـت کـشو د جدوجهـد او طبقـاتی برابـرۍ او مقصدي ژونـد پـۀ لـوړه ډهیـرۍ ولاړ وو. دغـه څـرک بـه تاسـو تـه د کتاب پۀ نظمونو کښې پۀ نظر راشي.

د باجـا د عـالـم زیـب خـان دی د کـورنۍ او د سـلیم خـان ایډوکیټ سره ئې د سیاسی هلو ځلو نـه عـلاوه د مینـې، خلـوص او اعتـمـاد کلکـه رشـتـه قائـمـه سـاتلې ده. دغـه یـو داسـې تعلق دے چې د کلونـو راسـې پـۀ ډېـرو لـوړو ژورو او خـوږو ترخـو حالاتو کـښې چـرې هـم نـۀ دے مـړاوے شـوے او نـۀ بـه مـړاوے شـی، ځکـه چـې دغـه تعلـق د خـود غرضـۍ، منافقـت او موقـع پرسـتۍ نـه پـاک د مینې او خلوص پۀ وندنی کلک تړلے دے.

زمـا او د نـورالامین یوسفزی خـو ډېـر ښـۀ مـشـیر دے او لـس کـم سـل مـشـورې ئـې پـۀ تـول پـوره وی. کـۀ د کپـړو، د کپـړو رنـګ، څـادر، واسـکټ، پېـزار، د سـیل دپـاره د ځـائې انتخـاب، کـوم پروګـرام لـه ځـو کـوم لـه نـۀ ځـو، کـۀ ځـو نـو ځـنـګ بـه ځـو او پـۀ کومـه لاره بـه ځـو، غـرض دا او دا رنـګ ځنـې نـورې معـاملې د عزیـز مـانیروال پـۀ خوښـه وی، خـو کلـه کلـه کـۀ چرتـه ناقابـل عمـل منصوبه یـا مـشـوره وړانـدې کـړی او اخـتـلاف ورسـره وکـړو، نـو

کوي به هم هغه خپله. په دغه پورتنیو توکیو او ورسره په بعضې سیاسي یا ادبي معاملو کښې زمونږ د رائې خلاف د خپل زړۀ په لاره ځي. دغه روئې ورله کله کله ډېر نه خو لږ لږ نقصان هم ورکړے دے.

د رحمت شاه سائل سره ذهني او قلبي تړون او فکري یووالے لري، څو څو وارې ئې په ورتېر کښې د سائل صیب سره شپې کړې دي او د سائل صیب سره په دغه شپو، ګپونو او بحثونو کښې ئې مونږ هم شریک کړي یو. دغه تعلق اوس هم شته، څو چرته چې موبائل فون دغه د تګ راتګ، شپو او ګپونو په مرۍ چاړه ایښې ده، نو بل پله سائل صیب د زماني ګردش پېښور ته راوستو او د عزیز مانیروال سره څو لکه چې ښارونو ډزې کړې وي.

د ستر پوهان، شاعر او سیاسي مبارز اجمل ختک سره ئې هم ډېرې ناستې پاستې، جلسې، جلسونه او د پښتونخوا د بېلابېلو علاقو دورې کړې دي.

د ډاکټر زیار، اکبر سیال، ذاکر ایډوکیټ او شمس بونیري سره کلکه پښتنه مینه، رابطه او تلے راغلے ساتي. زما او د نورالامین یوسفزي نه علاوه ئې په بې حجابانه ملګرو کښې د زیدې حبیب الله خان، د مرغز امجد، تصور مانیروال، قیصر خان، تسکین مانیروال او جان بهادر لالا شامل دي. کله کله چې جان بهادر لالاد مسئلو او وسیلو سانده راواخلي، نو ملګرے عزیز ورته وائي چې "لالا ماته ګوره چې زۀ ژوندے یم نو ته فکر مۀ کوه" په دې اورېدو باندې لالا زبردسته قهقهه ولګوي او بیا عزیز جان په فقیهانه انداز کښې خبره راغونډه کړي چې "ورې ورې خوشحالي نظر انداز کول نه دي پکار. بابا کور،

ماماګانو یارانو دوستانو سره تلل راتلل، تپوس پوښتنې، تحفې، مور پلار سره ناسته کول او د وریژو لړو ډماموډ پروپه مصداق ملګرو سره چکرې، پکنکونه راجوړول نظر انداز کول نه دي پکار:

هر چاته په مخ باندې صفا او رښتیا خبره کوي، د مصلحت نه کار نه اخلي. هم دغه وجه ده چې په تعلقونو کښې ئې ځائې په ځائې بریک یا ډیډ لاک راځي، خو دغه ډیډلاک ډېر نۀ وي. ښاغلے ئې پخپل جذباتي او مینه ناک مزاج ډېر زر بحال کړي.

پۀ ښاریو کښې تنګېږي، کـه چرته د پي.سي یا میریټ نـه د پروګرام بلنه راشي، نو سړے به چرت نه خرابوي، خو که چرته د شمال نه د کودې د میچ بلنه راشي، نو بدې به ئې وهلې وي او پروګرام له به ترتیبات ورکوي. وجه ئې ځرګنده چې د مصنوعیت نه شاکي دے او پر فطرت منین دے. د کچه کوټې په ګوټ کښې د بل لالټین په رڼا کښې ورته سکون راځي. کله کله وائي چې یره که ګډبه وے نو ښه به وے چې په کنډک پسې په غرونو غارو او ورشوګانو ګرځېدے او د مصنوعي دنیا د فریبونو او منافقتونو نه هډو خبرېدے نه.

د خپلو پښتني روایاتو کلک امین او مبلغ دے، ژوند ته اپروچ سائنسي لري، خو د خپل چوکاټ نه وتل ورته کفر ښکاري. هغه پښتون د خپلو اقدارو او شناخت سره د ترقۍ په معراج لیدل غواړي.

د عزیز مانیروال په روح کښې د ژوند سړې تودې او د ژوند خوارۀ تراخۀ داسې جذب شوي دي چې د هغه په شخصیت کښې دا پته نه لګي چې دے خفه دے که خوشحاله،مرور دے که پخلا، غصه دے که مسرور، هغه که چرته په جمات کښې د

# عزیز زما په نیز

عزیز اسم بامسمی دے، خکه زما عزیز، ستا عزیز او د گردې پښتونخوا عزیز.
زه ئې د وړوکوالی نه پېژنم، شاعری ئې زما نه وروستو پیل کړې ده، خو داسې تیز رانه لاړو، چې زه ئې ډېر وروستو پاتې کړم.
شاعری ئې د دقیقو فلسفو او مصنوعیت نه بیخی پاکه ده چې چرته کیسټ کښې ئې غزل غږېږی نو زه پرې ډېر زر پوهه شم چې د عزیز کلام دے خکه چې ددهٔ سټائیل بنخی بدل دے کلام یې رومانی هم دے د قام فکر هم کوی، خو بعضې خائې کښې د مبالغې نه کار واخلی او وائی چې "توله دنیا کښې پښتانهٔ ښکلی دی" کهٔ مطلب ئې د غنم رنگو مخو نه وی نو ترخهٔ حده به صحیح وی، ولې په شخصیت کښې د مخ د ښائینست نه علاوه ښکلے کردار او ښکلے ذهن هم پکار وی چې پښتانهٔ ئې پهٔ پوله هم نهٔ دی تېر شوی او عزیز ته وایم، چې وروره ژبه مادی ترقی سره ترقی کوی او د پښتون ایجاد بوساړه، پیړه او یوې جغ نور الله خیر صلا. لکه چې کومو قومونو تی.وی ایجاد کړو نو ورسره لفظ "ډرامه" او "پروگرام" هم ایجاد شو اوس کهٔ نن نه پنځوس کاله مخکښې سړے مړی وی او هغه ژوندے شی او تهٔ د هغهٔ مخکښې چاته اووائې چې هلکه! شپې له پهٔ تی.وی د ښکې ډرامې پروگرام دے، نو هغه ژوندے شوے کس به هډو پوهه نهٔ شی چې دوی څهٔ اووې. شاعری ئې عوامی رنگ ډېر لری د ښکلو الفاظو انتخاب او پهٔ صحیح خائې استعمال هم کولے شی. ما ورته وئیل، چې جانانه ستا غزل کښې چې راخی:

"سترغلي مې پرسېدلي دي جانانه"

ما وئيل! يار سترغلي اکثر پښتانۀ يو بل ته پۀ کنځلو کښې استعمالوي، ډېر ثقيل او بدرنګه دي څۀ له استعمالولو. سړے پوهه شه وې ياره بس او شوے کار دے نو. دے به نور هم ښۀ شاعر وو کۀ سياست يې نۀ کولے. زما په خيال ځنګه چې قول دے چې "د سياست په سينه کښې زړۀ نۀ وي" بل خوا شاعر خو د زړۀ خاوند وي نو دواړه څۀ اووايم؟ يا به زۀ غلط يم.

پۀ پښتو ادب کښې د نعت شاعرۍ ډېره کمزورې ده، خو عزيز چې کوم حمد او کوم نعت ليکلے دے نو بيخي ئې منفرد ليکلے دے او دغه انفراديت د عزيز خاصه ده.

ما سره يې ډېره مينه ده، هغه بله ورځ ئې راته وئيل، چې د عمر پۀ لحاظ به ته ما نه مخکښې مړ ېږې، نو زه به ياره تا نه دا تول خلق خبر کړم او ستا خوبۍ به بيان کړم. ما ورته وې اشنا زما لکه دپيشو اووه (۷) ساه دي، ځکه چې زۀ لکه د ققنس اوسوزم نو د خپلې ايرې نه بيا پيدا شم. ما ورته وئيل که تهٔ مخکښې مړ شوې نو زۀ به دې بيا بل شان اوستائيم.

بس پۀ لنډو ورته وام چې زما تو له شاعري واخله او ما له خپل دوه شعرونه راکړه، چې هغه دا دي:

نن راغلے ئې جانانه د سبا څۀ پته لګي
بيا بيا مۀ وايه چې خمه ياره بيا څۀ پته لګي
کلي والي مروتونه د ښار دوړو کښې ړاندۀ شو
اوس نۀ ستا څۀ پته لګي نۀ زما څۀ پته لګي

د هغه د کتاب د کاميابۍ دعاګو

**تسکين مانيروال**

۲۰۰۹/۴/۱۸

# خپلې يو دوه خبرې

د هرڅۀ نه مخکښې زۀ د خپل خالق شکر ګزار يم چې پۀ داسې ښکلې پښتون وطن کښې ئې پيدا کړم چرته چې ژوند پۀ جذپو کېږي. ساندې او سندرې يو بل سره غاړه غتې دي، چارچاپېره شاعري شاعري ده نو ما هم شاعري وکړه او يا زما نه شاعري وشوه.

زما شاعري د کتاب کولو جوګه ده او که نۀ ده، زۀ تراوسه پۀ دې نۀ پوهېږم خو دومره پوهېږم کۀ چرې دا کتاب پۀ شاعرۍ کښې اضافه نۀ ده، نو زۀ د خپلې مورنۍ ژبې پنګه کښې به اضافه شي.

زما سره نور څۀ نشته خو ملګرې مې شکر دے ډېر دي. څۀ مسافر او څۀ پۀ وطن. د ټولو ملګرو مننه کوم چې تل ئې زما سره بې بدله مينه کړې ده. د هغه هنرمندانو ممنون يم کومو چې زما بې هنره او شډلو بډلو سندرو له د خپل اواز خواږه ورکړي دي.

لياقت خان پيلات ګډ که نو انور مانيروال زما ټوټې ټوټې کاغذونه راغونډ کړل، املاء ئې ورله روغه کړه او د پېژندګلو روايت ئې هم ترسره که. دغسې نورالامين يوسفزي او تسکين مانيروال او تصور مانيروال خپل تاثرات قلم بند کړل. ددغو ملګرو د مينې پۀ بدل کښې به د يو ډېر ښۀ شاعر دا مصرعه ورته پيرزو کړم او بس:

"ياره رښتيا وايه ستا نظر کښې څنګه ښکارم"

پۀ دې دعا سره چې "خدايه پښتانۀ خوشحاله، اباد او پۀ امن کښې لرې، نو ټول جهان اباد، خوشحاله او پۀ امن کې لرې" به اجازت وغواړم.

ستاسو

**عزيز مانيروال**

۲۲/۲/۲۰۰۹

# رب العالمين

خـــومره لـــوئي شـــان دے
اظهـــارئـــي ګـــران دے

مينـــــــه ګـــــــواه ده
عقــــل حېـــران دے

لـــرْ بـــــه قهـــاروی
ډېـــر مهربـــــان دے

دومـــــره پـــــوهېږم
رحـــيم رحمـــــن دے

زمـــــا خـــــالق دے
زمـــــا جانــــــان دے

# رحمة العالمین

چې تیاره تیاره جهان رڼا رڼا شۀ
جهالت تۀ ئې ولـه نـړۍ کښې وارخطا شۀ

هـر پیغـام ئـې مظلومـانو لـه دعـا شۀ
هـر فرمـان ئـې رنځورانـو لـه دوا شۀ

خوشحال خان ختک شعرونو کښې ګویا شۀ
چې سیرت ئې د رحمـان بابـا انشاء شۀ

ښوارلس سوه کاله مخکښې سپین سبا شۀ
محمـدؐ.... اخر زمـان رسـول الله شۀ

# زما ورونو

جنګ قاتل دے انسانان وژلے کېږي
د چا ورور د چا جانان وژلے کېږي

چې زلمي زلمي زامن پهٔ ګولو لګي
نو د مور د زړهٔ درمان وژلے کېږي
چې پلاران ئې پهٔ سرو وینو کښې خړوب شي
یتیمان پهٔ هئ سوران وژلے کېږي
څنګه چپ شم هم پښتون هم مسلمان یم
مومنان او افغانان وژلے کېږي
زمونږ زمکه او اسمان وژلے کېږي
زمونږ غرونو کښې مارغان وژلے کېږي
د سرتور بابا د مینې ملنګانو
د بابا د روح ارمان وژلے کېږي

سترګه ورو، ژبه ورو، دانشورو
فلسفه د باچا خان وژلے کېږي



پښتنې نن دې د وعدو ماښام دے
هیر درنه نهٔ شی د پښتو ماښام دے

خپل تریخ ژوندون د رخصت لاس راکوی
ګله راځه د تماشو ماښام دے

د تورو رڼو مې نظر حیرت نیولے
زما د تلو ستا د راتلو ماښام دے

ناصحه ځه! پهٔ تا به هم ولګی
د الزامونو لګېدو ماښام دے

ملګرو نن د چا عزیز محفل کښې
د رژیدونکو پسرلو ماښام دے



کله بېګاه کله سبا راشي
دې ناداني پورې خندا راشي

ګله زمانه لېونے جوړوي
زړهٔ کښې خيالونه د پخوا راشي

هغه چې زهٔ پهٔ تا قربان ياد بدم
کاش کهٔ هغه وختونه بيا راشي

زما پښتون لوظ ماتولے نهٔ شي
يار کهٔ هر څومره پهٔ ادا راشي

زړګيه خپلې وينې ابلوه
عزيز لمبه که چې رڼا راشي



کاش کۀ مې بیا هغه مابنام ولیده
ستا پۀ وربل مې خان بدنام ولیده

د تُهمتونو مې جولۍ ډکه کړې
زما ګناه دې سرعام ولیده

الله دې نۀ کړی ستا پۀ حسن خزان
سپرلی مې تل پۀ تا مدام ولیده

جانانه ستا پۀ پُښتنه کوشه کښې
تاله واله مې ننګ و نام ولیده

عزیزه بیا د یار پۀ نیمه ادا
ستړې ژوندون مې پرې تمام ولیده

# لوبه

یواځې مـه ځـه لوپتـه پـسرو ومه
لا لیه زهٔ درسره ځمه
زهٔ بـه جنګریز کـښې دې پـهٔ شـا ولاړه یمـه
لا لیه زهٔ درسره ځمه

زمـا جانانـه ګلالـے ئـې
تـه پـه زلمو کـښې شاه زلمے ئې
اے پـهٔ ګوګل کښې مې زړګے ئې
د پـښتنې خـاورې بچـے ئـې
زهٔ پـښتنه بـه دې پـهٔ سترګو کـښې ساتمه
لا لیه زهٔ درسره ځمه

خزان د ېره زمونږ په چم دے
مونږه تراوسه کړے زغم دے
چې تنکيالے زما صنم دے
زما د دۀ په دم کښې دم دے
د ټولو جونو غېرتونه پاروومه
لاليه زۀ درسره ځمه

زما وربل له په ګلونو جنګ دے
درسره ځم په قسمتونو جنګ دے
پوئې شوم په سمه که په غرونو جنګ دے
زمونږ د ترږو ارمانونو جنګ دے
قسم دے دا سپېرۀ تندے به ماتومه
لاليه زۀ درسره ځمه

راځه چې دواړه لېونی شو
په خپل کاروان کښې ګړندی شو
مونږه به هله مېړنی شو
چې ورله مخې ته لوګی شو
عزيزه وروستو شه مورچه سمبالوومه
لاليه زۀ درسره ځمه



څواني زلفې ئې په مخ خورې ورې شوې
ارزوګانې مې د زړهٔ کړې وړې شوې

د بربرو لېونے ئې رانه جوړ کړو
چې د سپينې خُلې خيرې دې راپسې شوې

ګُله اوس مې د خوداره لېونتوبه
ناخبره ئې خبر ترې زمانې شوې

راته اووايه په کومه باندې لاړ شم
ټولې لارې راته ستا کوڅې کوڅې شوې

هغه شپه د هېرېدو نهٔ ده زړګيه
هغه شونډې چې پهٔ شونډو کښې اودې شوې

پهٔ عزيز زړهٔ کښې مې ډېرې حوصلې وې
خو چې تاته مخامخ شوم نوګيلې شوې



عالمونه به خبر کړم عجيبه ده
هم لوظونه ماتوی هم پُښتنه ده

ستا وعده خپل انتظار چې مخامخ کړم
د ښتو په چم کښې سمه تماشه ده

تومتونه به سبا تللے کېږی
چې زما غاړه درنه کۀ ستا درنه ده

قسمونه د وفا دې واړه مات کړل
نۀ ماتېږی زما کلکه حوصله ده

زلميتوب او پېغلتوب چې لېونی شی
د عزيز د لېونو نه ځه ګيله ده



چرته چې غېږ د محبت ولګی
دلته په ما باندې تومت ولګی

کۀ تش د پاکې مینې نوم واخلمه
په رقیبانو سم قیامت ولګی

جانانه ستا په بختور محفل کښې
په ما بدنامه د قسمت ولګی

کله چې خپله بې وسی وچېږم
مظلوم ژوندون راته وحشت ولګی

زما د سترې زلیمتوب سترګې دی
عزیز به کله په همت ولګی

# تــــګ

توري شپې دغه مې ضد دے
خپلې وينې بلوومه
د خپل فکر په ډيوه کښې
زلميتوب خاورې کوومه
د جانان د خوا نه لرې
غټو سترګو نه رابيل شوم
ګرمې شونډې مې حرام کړې
په بې سره ارمانونو
ګورو زلفو کښې تېرې وې
رڼاګانې لټوومه
ځان د ځانه خبروومه
ځو اسرې راغونډومه

د بيدار عقل پۀ سترګو

د جانان لارې څارمه

تورې شپې دغه مې ضد دے

کۀ تۀ هر څومره اوږده شې

کۀ تۀ هر څومره خوره شې

زۀ د وهم نه منکر يم

زۀ پۀ مينه قلندر يم

زمونږ لوئې حوصلې دی

زمونږ وينې تکې سرې دی

راسره د زلمی فکر

بلې لاسو کښې ډيوې دی

سور سحر پۀ انتظار دے

مونږه هم کړے اقرار دے.



د سترې لارې تيندکونو راتر غاړه وځئ
د پاکې مينې تومتونو راتر غاړه وځئ

زۀ درله داد درکوم تاسو ډاډګيرنه راکړئ
د ګناهګار ژوندون غمونو راتر غاړه وځئ

ما سره وژاړئ راجخت شئ چې مې خوا سره شي
اے هندې ارمانونو راتر غاړه وځئ

راځئ چې خپلې برخې وچيرو د يار کوڅه کښې
چې غاړې وکړو قسمتونو راتر غاړه وځئ

دا لېونے زړګے بلد دے رغيدن ئې نۀ شي
د چا رټلو خوابونو راتر غاړه وځئ

عزيز خيبر دے تاتره ده اباسين پۀ چپو
انسانيت سره لوظونو راتر غاړه وځئ



بس دے خېمه! د خيالونو د دنيا نه
چرته لرې د خالونو د دنيا نه

حسرتونه مې د زړهٔ پيکه شول
نازوولے د نازونو د دنيا نه

ستړې ستړې پرکالې مې راوېښېږې
پهٔ مړوند دې د خوبونو د دنيا نه

ستا راتلو ته لېوالې نيولے زړهٔ مې
ګُله خې د ديدنونو د دنيا نه

لېونيه ګناهګار ئې زيرے اوشو
پهٔ عزيز د قسمتونو د دنيا نه

# لوبه



وعده مې کړې ستا ورېل به ډکومه
د سرو ګلونو نه جانانه
غاړې له ستا به امېلونه جوړومه
د سرو ګلونو نه جانانه

ستا بد قسمته پېغلتوب له
خپل بد نصيبه زلميتوب له
دا ستا ځوانۍ خپل سرېتوب له
زمونږ د دواړو لېونتوب له

زۀ بۀ ترې ځان له قسمتونه سازوومه
د سرو ګلونو نه جانانه

د مينې کور کښې به اوسېږو
بس د يو بل نه به ځارېږو
دواړه به خپل ځان ته پسخېږو
سم په يو بل به راوړېږو
ډالۍ به ستا تولو همځولو ته لېږمه
د سرو ګلونو نه جانانه

په لوئې خيبتر به ئې راوړمه
په تورو غرونو به شيندمه
په ښاريو به ئې ويشمه
ښارې مېرې به رنګومه
د چم ګاونډ کلي کوځې به خبرومه
د سرو ګلونو نه جانانه

دا مړ ژوندون به راژوندے شي
هر څوك د هر چا به زړګے شي
هر يو زلمے به تنګيالے شي
عزيز به سم ذم لېونے شي
زۀ تربنه خپلې وينې نۀ منې کومه
د سرو ګلونو نه جانانه



ستا په کمڅو کښې رنګارنګ ګلونه سترې نۀ شي
زما په زړۀ کښې په درزا دړدونه سترې نۀ شي

بې وفائي دې د ادا په لوپټه پټه کړه
زخمي ګوګل کښې مې تازه زخمونه سترې نۀ شي

ما په خوږو خوږو خبرو باندې مۀ غُلوه
د مړغيږن ژوندون تراخۀ وختونه سترې نۀ شي

په وارخطا عشق مې دومره اعتماد مۀ کوه
چرته زما د لېونتوب رازونه سترې نۀ شي

عزيزه ته هم تېرې نورې خوږې مۀ يادوه
خو جانانه بيا دې پرونې لوظونه سترې نۀ شي



نــۀ د جهـــان نــۀ د جانـــان قيـــصه ده
دا مـــې د خپـــل ســـرتور ارمـــان قيـــصه ده

د وخـت پـۀ لاسـو چـې ريـخـى ريـخـى شـو
بـــس د هغـــې خيـــرې ګرېـــوان قيـــصه ده

زمـــا د ســـترې زړۀ چـــاودلى ژونـــدون
خـــواره قـــسمته ســـتا پـــۀ شـــان قيـــصه ده

کـــۀ تـــومتى شـــومه پـــۀ پاکـــه مينـــه
دا خـــو زمـــا د امتحـــان قيـــصه ده

عزيـــزه زړۀ قلارولـــے نـــۀ شـــې
څۀ د وصـال څۀ د هجـران قيـصه ده



سم سرۀ ګلونه دي پۀ تور وربل کښې وستائيمه
تۀ لـه راتولـه دي پخپـل غـزل کـښې وسـتـائيمه

کـم بختـي مينـې زۀ دي روغ لېونے کـړے يمـه
پۀ ګونګه ژبه دي د سترګو ځل کښې وستائيمه

ريچـې ريچـې ارمانـه اوس دي غلـولے نـۀ شـم
يو لېونى تپـه بـه تـود محفـل كـښې وسـتـايمه

هغې کونجي کلکه کړه ما سره پۀ سترې مزل
زۀ ورلـه سره لوپټـه هر محفـل کـښې وسـتـائيمه

دا تومتونـه مـې پـښتـون زړګـى لـه داد ورکـوى
عزيزه خپل ځان به پۀ خپـل منزل کنهې وسـتـائيمه



ښکلو راغونډ شۍ خپل زړګے ویشمه
ستاسو د مینې غلچکے ویشمه

زما په تاسو پېرزوینې کېږی
بس یو ارمان یو اسویلے ویشمه

تا په وربل کښې پسرلی وکړل
زۀ په جامونو ماښامے ویشمه

رانه چاپېره د جانان غمونه
ټکرې ژوند لوګے لوګے ویشمه

مینه عزیز ورته بانجی بانجی کړه
دا په ملګرو درناوے ویشمه

# دا ماشوم؟

دغه ماشوم چرته د لرې نه راغلے ښکاري
خوګ بانډچې دے حیرت وړے غلے غلے ښکاري
خپې ابله خپې لنډې جامې ګرېوان شلېدلے ښکاري
د دوزخې ژوندون لمبو کښې سوزېدلے ښکاري

په دکچکې بازار کښې ډېر اوتر روان دے
تنکے وجود په دانګو زوړند سر روان دے
خوګ غم زپلے جل وهلے مرور روان دے
شاعر احساسه لرې راویښ شه بختور روان دے

ما اشاره وکړه په منډو منډو ماله راغے
هغه خوشحاله شو زۀ پوهې شومه خوشحاله راغے
ما ترې تپوس اوکۀ د کوم خائې ئې چې خواله راغے
بس غلے پلے غریو نیولے شو ژړاله راغے

مجال ئې نشته بې مجاله زړۀ چاودلے ښکاري
د ولوړو تندو په خپېړو لګېدلے ښکاري

حالونـه وائـي راتـه تـول سـلګو نيـولې
د خپـل ناروغـه پـلار قيـصه کـوي جـذبو نيـولې
هـر څـه تـه وړې وړې ګـوري بـېوسـو نيـولې
ډېـر سـتړې ستړې ژوبلـو ژوبلو اسويلو نيولې

د خپـې غـم د مـور او پـلار د نـاروغـۍ غمونـه
پـهٔ دې مـاشـوم بانـدې راپنـډ دلـې دلـې غمونـه
وريـورې اور د ګنهګـارې زنـدګـۍ غمونـه
دروغـه بخـتـه دا دی سـتا د بنـوتـې غمونـه

د داسـې فکـر پـهٔ تـالونو څنګېـدلې بنـکاری
لکـه چـې څوک د قـسمتونو ويـش کـړلې بنـکاری

زمـا نظـر ددهٔ پـهٔ سترګو کـښې سوالونه شمـاری
پـه غوټـه غوټـه ژبـه دې خپـل ارمانونه شمـاری
زهٔ ورتـه لـوئې سـړې بنـکاربېم منتونه شمـاری
وارهٔ وارهٔ لاسـونه ماتـه جنتونـه شمـاری

وائـي لالا زهٔ پـهٔ هوټـل کـښې کـار کـولې شـمه
چـائې پخـولې شـمه لوښـي کېښـودلې شـمه
دغـه پيـالې او پتيلـې ورلـه وينځلې شـمه
ورتـه حيـران شـومه چـې اووائيم کـهٔ غلې شـمه

هـر یـو کـړان سـره پـهٔ نـره جنګېـدلے ښـکاری
قسم پهٔ خدائې د ے دا ماشوم څومره ښاغلے ښکاری

د نـصیبونو راتـه مـهٔ کـوه قیـصی ژوندونـه
زمـونږ پـه برخـه رسـېدلی تـوربختی ژوندونـه
چرتـه وروکېـږه څـه د ډیـرې کریـابی ژوندونـه
پـهٔ ماشـومانو بانـدې هـم کـړې مـزدوری ژوندونـه

سـوال کـووم ستاسـو نـه ملګرو د ے نهرولـې د ے
د رڼـا فکـر خاونـدانو کـور و کـر ولـې د ے
د خدائې پـهٔ ارتـه بیرتـه زمکـه در پـهٔ در ولـې د ے
د ے د قلـم او د کتابـه نـاخبر ولـې د ے

زمـونږه فکـر خـو پـهٔ دې سیمه شیندلے ښـکاری
دا زلمیتـوب مـې دې نظـام تـه قاربـدلے ښـکاری



داسې بې کاره ناپکار دې کړمه
يه غريبۍ خومره ناچار دې کړمه

منم تراوسه بې روزګاره ومه
لېونۍ مينې په روزګار دې کړمه

د جانان غم ته هر کلے وائيمه
غم دورانه لړ ايسار دې کړمه

زما نختر خواني دې وربېلله
کمبخته يساره کړمار دې کړه

کله چې وخاندې نو بُنکل دې کړمه
کله چې وژاړې قلار دې کړمه

خپل زلميتوب راته په جار اووئيل
عزيزه غرق دې کړمه، خوار دې کړمه



دا یقین مې سل په سل دے
عزیز روغ نهٔ دے پاګل دے

ما تاؤ کړې دي بریتونه
ستا غُنچې غُنچې وربل دے
زوړ اشنا زیـن کـړے اس وي
پښتنو کښې دا متـل دے
تر هغې نهٔ بوډا کیږم
چې ترخو غاړه غندل دے
ستا سپایان بانهٔ دي
زما زړهٔ د مینې غل دے
تهٔ چې راشې وارخطا شم
دا خو خامخا څهٔ چل دے

یا د یار شونډې خوږې دي
یا عزیزه ستا غزل دے

## دوه شعرونه

زۀ د وصال پۀ شپه هجران ناروغه کړے يمه
ظالم انکار د خپل جانان ناروغه کړے يمه

مينه کوي ولې پۀ مينه باندې نۀ پوهېږي
داسې هوښيار داسې نادان ناروغه کړے يمه

## درې شعرونه

د دوران غمونـــه ډېـــر شـــول
ستـــا غمونـــه رانـــه هېـــر شـــول

ځـــۀ تراخـــۀ وختونـــه راغلـــل
ځـــۀ خـــوارۀ وختونـــه تېـــر شـــول

ناچـــارۍ زړګـــي دې وچـــوه
د عزيـــز يـــاران د شـــمېر شـــول

# دُعا

(خپل ماشوم زوئ "ګوګل جان" ته دُعا چې (۳۱/۱۲/۱۹۹۲) باندې وليکلې شوه)

کـــهٔ منـــزل تـــه ډېـــر مـــزل دے
خپــل پښتــون احســاس مــې مــل دے
کـــهٔ ګوګـــل دے او کـــهٔ بـــل دے
هـــر بچـــے زمـــا ګوګـــل دے

تـــهٔ د پـــلار د زړه درمـــان ئـــې
ګوګل جانه خدائې دې لوئې کړه
تـــهٔ ســـپائی د باچـــا خـــان ئـــې
ګوګل جانه خدائې دې لوئې کړه

ته احساس شې ته جذبه شې
ته د امن یو تپه شې
حوصله شې ولوله شې
د وطن نه صدقه شې
د پښتون د پګړې شان ئې
ګوګل جانه خدائې دې لوئې که

د سرتورې خور خادر شې
د غمژنې مور اختر شې
انجنیئر شې ډاکټر شې
د خپل قام په غم خبر شې
داسې داسې مې ارمان ئې
ګوګل جانه خدائې دې لوئې که

د جانان شي د جهان شي
ګوګل جانه په زړه خان شي
توریالي ننګیالي ځوان شي
ننګ ناموس باندې قربان شي
په پښتو ژبه ودان ئي
ګوګل جانه خدائې دې لوئې که

د "روښان" د پټکي ول شي
د "رحمان بابا" غزل شي
د "خوشال ختټك" په پل شي
"رحمت شاه" غوندې سائل شي
د عزیز نوم او نښان ئي
ګوګل جانه خدائې دې لوئې که



ستا يادونه ډېر خوارۀ لړي
پهې مې پۀ ژوبل زړۀ لړي

کلي ته ئې ورمه ورځې تلې ووم
راغلمه پرون نن څومره ښۀ لړي

چرته چې د ژوند خبرې نه کېږي
هلته تومتونه پۀ چانۀ لړي

يو ځلې بس يو ځلې راوګوره
ګرانه ډېره ګرانه ستا پرې څۀ لړي

موږ غوندې د زړونو بادشاهانو ته
عقل او مازغۀ کارۀ وارۀ لړي

هله بۀ ملګرو ته عزيز شمه
کله چې پۀ قبر مې وانښۀ لګي

# قطعه

دا لېونتوب دا لېوالي دا مجبوري د زړګي
ستا په کوځه کښې اشنا ستا د ور تمبې ټکوي

دومره خو مخ را يکسرن کړه د بنا پست ملوکې
د پاکې مينې ځنکدن دے لاس او خپې ټکوي

❋❋❋

زما ړنا ړنا ملګرو د تيرو کلي کښې
ځان بلول او ړناګانې خورول به کوو

د تومتونو الزامونو نه پنډونه جوړ کړئ
تګ که زړه چاودے دے په لوري د منزل به کوو



وئيلے نشمه په څۀ خوږېږي
کله ناکله مې دا زړۀ خوږېږي

هغه چې ووينمه نۀ خوږېږي
هغه چې نۀ وينمه ښۀ خوږېږي

د خپل شاعر زړګي به څه اووائيم
کله خوږېږي کله نۀ خوږېږي

توبه توبه د بېلتانۀ د تبه
زلمے وجود مې په سارۀ خوږېږي

وعده چې ماته شي پښتو ماتېږي
په دې قسم دے پښتانۀ خوږېږي

د غرۀ د سره يو تپه کومه
کلي کښې زړۀ ښار کښې مازغۀ خوږېږي



بېسه بدنام شول لېوني خيالونه
زما او ستا انقلابي خيالونه

خزان ځپلي مړغيږن کلي کښې
هغه سپرلي هغه ژوندي خيالونه
ته ملالۍ زه خوشال خان نه شومه
خنګ به خوارۀ شي پښتني خيالونه
زما غزل تپه تپه کښې
ستا د تتکۍ او ميخکي خيالونه
دا جنتي دا دوزخي خيالونه
دا خو په ژوند کښې د مرګي خيالونه
ځوانه ځوانۍ کې دم ختلے شومه
يو غريبي ده بل زلمي خيالونه

ساده باده عزيزه څۀ پېژنې
د څو ملګرو بازاري خيالونه



د خوږ جانان د کلي لارې بس دے سترے شومه
اوس که زما په انتظار ئې بس دے سترے شومه

منم د مينې په بدل مې درنه مينه غوښته
که په اقرار که په انکار ئې بس دے سترے شومه

د زړۀ چاودلي ژوند رازونو ته راورسېدم
د خپله ځانه نازوګار ئې بس دے سترے شومه

حېرانه مۀ شې په ما نورې انګازې وشولې
تۀ به تر کومې زړونه ځارې بس دے سترے شومه

يه لېونتوبه اوس مې خپلې دنياګۍ ته بوځه
زمونږه برخې به وې خوارې بس دے سترے شومه

د لېونی عزيز په طمع سترګې مۀ توروه
زما راتلو ته ناقلارې بس دے سترے شومه



لېونے کړم لولپا کړم ستا غمونو سر خوړلو
په ځوانۍ کښې ئې بوډا کړم ستا غمونو سرخوړلو

ژوند ګران شوے دے جانانه هر څۀ کېږي په نوټونو
په ایمان چې وارخطا کړم ستا غمنو سر خوړلو

ګوتې شمارمه په لاره په ځان خاورې بادومه
داسې داسې باتریا کړم ستا غمونو سرخوړلو

خپل احساس اوده کومه ځان د خوده راوباسم
میکدې سره اشنا کړم ستا غمونو سرخوړلو

زړۀ مې نۀ لرې په ښار کښې د حجرې جمات سړے یم
خو د کلي راجدا کړم ستا غمونو سر خوړلو

نور به څۀ وکړې عزیزه د حالاتو ستمونه
په مونځونو کښې خطا کړم ستا غمونو سر خوړلو

# سپرلے او زهٔ

(دا نظم ما د اروابناد مولانا باچا خان چې پهٔ ما ډېر ګران وو، پهٔ یاد کښې لیکلے دے او پهٔ مولانا باچا خان کانفرنس کښې اورولے شوے دے.)



پسرلے مخې له راغے
یو تپوس ئې رانه وکهٔ
وې چې دلته یو زلمے وو
ددې کلي جګ پتکے وو
د غېرت او ناموس غر وو
زړهٔ ئې د مینې سمندر وو
پهٔ هر چا باندې شیدا وو
د الله د در ګدا وو
ستر پښتون ښه مسلمان وو
مساوات ئې لوئې ارمان وو

ډېر سرتېر انقلابي وو
تش لاسونه دريابي وو
دې نظام سره په جنګ وو
قلندر وو نر ملنګ وو
حق او عدل ئې منزل وو
جدوجهد وو عمل وو
په وجود لکه خيبر وو
د مفتي صاحب لښکر وو

سپرلي وې نخښې ئې دا دي
خوستا سترګې په ژړا دي

ما وئيل يه پسرليه
څۀ خبر ئې لېونيه

پسرلے بيا داسې ګويان شۀ
ما طرف ته راروان شۀ
زما غريو په ماتېدو شو
دے هم ډېر حېران دريان شو
وے زۀ به کال په کال راتلمه
ناغرض به تېرېدمه

وې چې دۀ سره مې لوظ وو
ډېر ګلونه به راوړمه
ما وئيل د زړګی سره
په سپرلیه مسافره
څه ورځه په خپله مخه
داسې بنۀ ئې ناخبره

دۀ وې نه کنه ورځمه
دا ګلونه ورکوومه
آ به هم پۀ انتظار وی
زۀ هم لوظ پوره کوومه



ما وې راشه چې دې بوځم
لږ پۀ سا شه چې دې بوځم
مقبرې ته مې روان کۀ
پۀ دعا شه چې دې بوځم
دا د هغه زلمی ځلے
دې کبنبې پروت هغه بناغلے
دا ګلونه پرې خواره کړه
ولې ژاړې غلے غلے



سيل لـه څـو جانانـه تماشې لـه څـو
يـاره اباسين تـه يـوې شپې لـه څـو

سـتړی شـو د لادو بـادو پربوتـو
لـږ غونـدې قـرار لـږې دمـې لـه څـو

مـا پـهٔ غريبـۍ کښې خـاني وليـده
مينـې کـونجۍ راکـه يـارانې لـه څـو

يـه خدايـه دا مـرګ ولـې ژونـد ے ګرځـي
يـه ملګـرو تـول بـه دې ګيلـې لـه څـو

عقلـه يـاره بـښهٔ دې پېژنـدلی يـو
چرتـه چـې مـو زړهٔ غـواړی هغـې لـه څـو

هغـه چې ئې ژونـد سـندره کـړے وو
هغـه عزيـز مـړ شـو جنـازې لـه څـو

# لـوبـه

جانه سپرلو د اباسین غاړې نیولی دی
شړشم ګلان سپړدلی دی
زمونږ کلـی تـه راشه

زمـونږه کلـی کـښې میلـې دی
چینـې خوږونــه دې ولـــې دی
د دنګـــو غرونـــو سلــسلې دی
دلتـه ننګونـه غېرتونـه زېږېدلی دی
شړشم ګلان سپړدلی دی
زمـــوږ کلـی تــه راشه

دا خـــور مـــانـې، دا الـــوچې دی
دا شـــاتوتان غـــوټې غـــوټې دی
د انځرانـــــو خوشـــــبویې دی
بره ما بڼ کښې خو ممانې لګېدلی دی
شړشم ګلان سپړدلی دی
زمـــونږ کلی تـــه راشه

شیـــشتي، ملخـــوزې او غنـــدلې
د ســـاګو ډکـــې پـــولې پـــولې
دا خلـــې راشـــه نـــازولې
پلو دره کښې شا غندلې راختلی دی
شرشم ګلان سپر دلی دی
زمونـــږ کلی تـــه راشه

زمکـــې اغوســـتے شـــین څـــادر دے
پکـــې تیـــر شـــوے دے چیتـــر دے
بـــاران بـــه راشـــي مـــازیګر دے
د کرمار پهٔ سر وریځې پرقبدلی دی
شرشم ګلان سپر دلی دی
زمونـــږ کلی تـــه راشه

عزیـــزه څـــه چـــې دواړه ځونـــه
هلتـــه ســـپرلی هلتـــه ګلونـــه
د ســـوات، بـــونیر وکـــړو ســـیلونه
تمام عالم د درمائی پهٔ کنډاؤ تلی دی
شرشم ګلان سپر دلی دی
زمونـــږ کلی تـــه راشه

# قطعات

زلمی ویخول غواړي جینکۍ ویخول غواړي
تپه په زلمیتوب کښې لیونۍ ویخول غواړي

د فکر په رڼا ورله ذهنونه منور کړئ
ښاري ویخول غواړي غرځنۍ ویخول غواړي

❋❋❋

مونږه تول په یوه مینه ګناهګار یو
ښه په ډاګه ښه ښکاره یو ښه په جار یو

مونږ د تول انسانیت په مخ مئین یو
هیڅ بې هېڅه د اشنا سترګو کښې خار یو



خــو مره منــت خــو مره زارۍ غــوا ړي
محبــت هــم پــهٔ زړګــی ځــائې غــوا ړي

د پېنځــهٔ کــم ځلو ېــنــتو کـــالو شــو مه
زړهٔ مــې مــستې شــل کلنــۍ غــوا ړي

ستـــا غونــډه مونــډه دنګــه لــو ړه پــوزه
یـــا مـــیخکے او یـــا تتکـــۍ غــوا ړي

خدا یـــه زمـــو نږه چغـــې اورې کنـــه
خــوك باچـــائي او خــوك ډوډۍ غــوا ړي

اختــر نـــزدې شــهٔ قــرض پــور ګورمــه
لــور مــې څــادر، زوئـــې څپلـــۍ غــوا ړي

د پنجابۍ په ژبه نه پوهېږي
زما مور ماله کابلۍ غواړي

د جانان کلي دومره ډېر لرې دے
تله راتله غوټې سل روپۍ غواړي

او کنه هغه عزيز پېژنمه
هر ماسخوتن د خوب ګولۍ غواړي



ستا د وعدې هغه سبا تېرېږي
په انتظار مې نا روا تېرېږي

ساقي که ډېرې پېرزوينې وکړې
هغه مې زړه کښې خامخا تېرېږي

ګله په مينه ګناهونه ګټم
ژوندون په دغه مشغولا تېرېږي

خلق به څه وائي پښتون کلي کښې
چې ستا جفا زما وفا تېرېږي

څه د جهان څه د جانان غمونه
کله هغه او کله دا تېرېږي

عزيزه داسې چم کښې وزيږدې
د مينې نوم ورکښې بلا تېرېږي

# لاړه غلطه نۀ کړو

مونږ مينه کوؤ
مونږ حسن ستايو
زمونږه زړونه سپرلي
ټول ګلان اوويشو
پۀ مينه مينه
څۀ خپل جانان له ورکړو
څۀ ټول جهان له ورکړو
دي ناتمام تورتم کښې
ژوندون ډيوه ډيوه کړو
هم د خپل يار دپاره

هم د اغيار د پاره
مونږه ته ګرم اووائي
مونږ ورته سم اووايو
څکه چې سترګې لرو
څکه چې مينه کوو
هغه خپل ځان وګڼو
څوك چې انسان وګڼو
هغه زما نه لرې
زۀ د هغۀ نه جدا
آخر ولې؟
فاصلې وزيږيږي
کينې خورې ورې شي
زۀ او زما فکرونه
چې خپله لار لنډوو
د پاکې مينې په مخ
د سولې سر پېژنو
د تومتونو امېل

پهٔ هسکه غاړه اوړو

د ګناهونو پیتې

پهٔ سر د فخر ګڼو

د یار پهٔ چم تېرېږو

پهٔ هر ستم تیریږو

پهٔ مزل ستړی نهٔ یو

مونږ به منزل ته رسو

شاته کتے نه شو

لاره غلطه نهٔ کړو.

# اختر ته

زمونږ په کلی چې راځي اختره
مخکښې به دا وعده کوي اختره
مونږ له به هغه څه راوړې اختره
چې زمونږ کومې وي غوښتې اختره

ازادي راوړه زنځیرونه مات کړه
سم سور سحر شه ظلمتونه مات کړه
ردي رسمونه رواجونه مات کړه
مینه شه مینه نفرتونه مات کړه
ګنې نو مه راځه په دې اختره
چرته ورو کېږه د پیسې اختره

سرتورې جونې لوپټې غواړي
بربنډ بچي درنه جامې غواړي
زړونه سیالي غواړي مزې غواړي
نادیده سترګې تماشې غواړي
زمونږه چم زمونږ کوڅې اختره
درته چې ونۀ کړي خبرې اختره

ولوړې له ښه ډېره ډوډۍ راوړه
ما له پګړۍ یار له ټټکۍ راوړه
پېغام د امن وروولۍ راوړه
پښتون هېواد ته خوشحالۍ راوړه
درته به زړونه کړو لمبې اختره
زمونږ وعدې وي پښتنې اختره

ټولو له برخې برابرې ورکړه
اختره ټولې بختورې ورکړه
سپېره قسمت له مې ډغرې ورکړه
ډالۍ نزدې او لرې ورکړه
غمونو کړو ذرې اختره
مونږ به د ځانه خبروې اختره

چې د هر چا شې نازولې راشه
بیا مې کاله ته خندېدلې راشه
لکه د سرې غوټۍ سپړدلې راشه
عزیز چې خنګه ئې غوښتلې راشه
څوک غلوې څوک خپلوې اختره
درنه مې ډېرې دی ګیلې اختره



زۀ ساده یار تېلـه دار دے
دا خوښې غونډې کار دے

زما سوال زما منت دے
ستا پۀ شونډو یو انکار دے
یو طبیب پرې نۀ پوهېږی
کپرې کښې مې ټکار دے
پۀ ایمان ئې درته وائیم
بې ایمانه دے غدار دے
سم سحر وختی به څمه
دیار کلی کښې مې کار دے
دا چې ټولو کښې خبسته دے
دغه ښکلے زما یار دے

ګزران ګران شه پۀ وطن کښې
عزیز تیښتې ته تیار دے



د بنو لاندې په چل چل څومره مزه وه پکښې
تا به کتل ما به کتل څومره مزه وه پکښې

هغه يو شپه چې ګړګړو بابا اسمان راچوؤ
زړونه بې واره درزيدل څومره مزه وه پکښې
پخوا به مونږه لوئې لوئې حوصلې لرلې
پښتون يقين په خدائې توکل څومره مزه وه پکښې
تا چې به ما پورې خندل هغه دې ياد دی کنه
ما چې به تا پسې ژړل څومره مزه وه پکښې
د لوئې لارې هغه ګُور تُوت ته به وختمه
ما به څنډل تا به خوړل څومره مزه وه پکښې
ماشوم ووم مور سره به تلمه ماماګانو کره
هغوئ به مونږ کره راتلل څومره مزه وه پکښې

عزيزه ستړے شومه پوزې له راغلے يمه
وخته راوګرځه يو ځل څومره مزه وه پکښې



مینې د مازغو نه دې بې غمه کړم
بنه شوه د لانجو نه دې بې غمه کړم

خوښ مې دی شراب خو اخیستے نۀ شم
جیبه د توبو نه دې بې غمه کړم

یه غریبۍ، څو مره لږو ورځو کښې
ډېرو یارانو نه دې بې غمه کړم

شکر دے پښتون دې پیدا کړے یم
خدایه د ګیلو نه دې بې غمه کړم

یاره ستا د غرونو شاته کلے دے
وئ کنه د خپو نه دې بې غمه کړم

ستا عزیز شوم عقل فکر څۀ کووم
دې لېونو سپو نه دې بې غمه کړم



اووایه پۀ چا مې زړۀ بایللې دې
او کنه پۀ تا مې زړۀ بایللې دې

هر خلې دروغ وئیلې نۀ شمه
دا خلې رښتیا مې زړۀ بایللې دې

اوچیچه غصه شه شونډې اوچیچه
ستا پۀ دې ادا مې زړۀ بایللې دې

پټ پټ، غلې غلې درته ګورمه
شومره پۀ غلا مې زړۀ بایللې دې

بیا د غنم رنګو چم ته تلې ووم
ګوره ورته بیا مې زړۀ بایللې دې

یه عزیزه سترګو ته دې اووایه
ستاسو پۀ صلا مې مې زړۀ بایللې دې



کله کله دې رټلے کله کله دې منلے
ګله ما چې څۀ غوښتلے تا پۀ مینه راکولے

زۀ به خامخا درځمه ستا راتلو باندې شکی یم
ما پالونه اچولے ستا ښئ سترګه رپېدلے

زمونږ ډېره نادانی ده ګنی دا دنیا فانی ده
زۀ لۀ تا نه خفه خاربدلے تۀ لۀ مانه خاربدلے

دلته خوږ دے دلته غرونه، دا غوړاسکی نخترونه
خومره ښکلے ستا سو کلے ویم چې دلته اوسېدلے

کاش چې دواړه ماشومان وے ناخبره د جهان وے
تا ګوډیانې لوبولے ما ګلو ډنډئ کولے

کله ښکلو پسې ګرځي کله څکلو پسې ګرځي
عزیز زړه داسې ساتلے سم پۀ سر ئې خېژولے



مانیرې کښې یو سړے دے
ستا د مینې لېونے دے

نا خبرو څۀ خبر یئ
مینه څۀ عجیبه شے دے
ستا خیالونه بو دا ګان شول
زما فکر لا زلمے دے
د سپرې ابې میاشت ده
یاره مۀ څه مابنامے دے
پۀ څلور کونجه دنیا کښې
پښتون نر دے تنګیالے دے
زما بریتو سره نښلی
ستا پۀ پوزه میخکے دے

دا دروغ پرې څۀ له وایې
عزیز مړ نۀ دے ژوندے دے



دا بـــه کلـــه زمـــا کېـــږي
بیـــا مـــې عمـر پـهٔ شـا کېـږي

ســتا دا لړزنـــده خیـــرې بـــه
یـــو خُـــل ماتـــه دعـــا کېـــږي

پـهٔ سـاعت کـښې مـرور شـي
پـهٔ ساعت کـښې پخـلا کېـږي

دا چـــې دلتـــه نـــاروا دي
دا بـــه هلتـــه روا کېـــږي

ســر مــې ســپین نظـر کمېـږي
مینـــه لالا ســـیوا کېـــږي

دا غـــزل بـــه ئـــې زلمـــے وي
خـــو عزیـــز پـــه بـــوډا کېـــږي

# زما ملګرو

د تریخ ژوندون په لاره
زما خوږو ملګرو
ستاسو په مینه باندې
بر جغ زړګے لرمه
په تکو تورو شپو کښې
یه اورکو ملګرو
ستاسو احسان منمه
تاسو شعور راکړے
تاسو احساس راکړے
زۀ هم بدل درکوم
زما د ژوند هره ګهړۍ
هره لحظه ستاسو ده

منم خپې ابله يو تول

په دې ازغنه لارې

دا ستړے ستړے مزل

دا زړۀ چاودلے سفر

دا ژوبل ژوبل سفر

پولې پولې مازيګر

ذرې ذرې مابنامے

ريچې ريچې شپه پۀ سر

بيا هم روان يو ګل منزل لټوؤ

خو يه زما ملګرو

زما د زړۀ پۀ دې ګونګې ماحول کښې

ډېر ارمانونه اوسي

مانه سوالونه کوي

زۀ لاجوابه يمه

ټول رانه تاؤ راتاؤ دي

څۀ د جانان غمونه

څۀ د دوران غمونه

داسې خيزونه غواړي

چې زۀ ئې نۀ پېژنم

کله ئې ځنګ غلووم

کله ئې ځنګ غلووم

ګرانو ملګرو منم

تاسو زما په خاموشۍ شکي شئ

خو تاسو څۀ خبر یئ

زما نولونه دېر دي

زما غمونه ډېر دي

پۀ ما بارونه ډېر دي

څکه یو دوه قدمه

ستاسو نه وروستو ځمه

خو بیا هم ستاسو یمه

چې داسې ونه ګڼئ

چې مړه خوا شو عزیز

او د بل چا شو عزیز

تاسو د ټول جهان یئ

زۀ به هم ستاسو یمه

ستاسو پۀ پاکه مینه

درته خوګند کومه

ترهغې پورې به

چې ژوند غږېږي راکښې

او کۀ چرې

ژوند بې وفائي وکړله

نو بيا

زما د قبر پۀ خازه ولکئ

" د انقلاب سندره"

"د يو پښتون انقلاب

د خوشحالو انقلاب

د سوکالو انقلاب"



تا چې د پټې مینې داسې مخ روښې وکړله
زړګیه دا دې سرکوزې کۀ سرلوړې وکړله

ورته لوګے شمه د مینې پۀ تومت مئینه
ما ګستاخي وکړله تا پرې خوشحالي وکړله

منم ګناه ده بدنامي ده د ایمان وېره ده
دا مې توبه ماته کړه دا مې میخواری وکړله

هغه د یخې شپې یو څو لحظې یو څو ساعته
مونږ اشنائي وکړله مونږه ناشنائي وکړله

غاړه غتې غبږه پۀ غبږه شول مېین فکرونه
زړو دلبری وکړله سترګو ریباری وکړله

ستا احسانونو ستا یادونو داسې وچېړلم
خود مې غزل ولیکه خود مې شاعری وکړله



ته څهٔ وائې ولې غلے غلے یم
هغه شپه ئې هېڅ بېسه رټلے یم

زهٔ ئې پهٔ سندرو کښې ستائیلے شم
چا چې پهٔ کنځلو کښې ستائیلے یم
هسې هم بدنام یمه پهٔ کلی کښې
هسې هم ستا نوم سره تړلے یم
یه زړګیه هرڅهٔ رانه مهٔ غواړه
ګوره بېګاه خپل اشنا کړلے یم
دا څهٔ لېونی کانې راوشولې
شونډې مې پهٔ شونډو خوبولے یم
ما سره ئې چل چلکے کړے دے
هم ئې رابللے هم شړلے یم

اوس عزیز پهٔ خلقو کښې بناغلے یم
دا چې تومتونو پېژندلے یم



بیا ئې نور درد ونه پیدا کړي دي
دې زړه رانه یو دوه خطا کړي دي

یو خوا د دوران غمونو وخوړم
بل خوا اشنا سترګې ناآشنا کړي دي
ښکلو خفه نهٔ شي یو خبره کړم
تاسو مونږ له کسی ترپیا کړي دي
یه ملګرو سترې ژوند سره
ما خپل ارمانونه پُخلا کړي دي
مونږه خپل ځانونه سوزولي دي
مونږه تورتمونه رڼا کړي دي
مینه کوم زړونه ساتم ولې نه
ما پهٔ تشو لاسو دا کړي دي

ښه شوه چې د لادو بادو پرېوتو
دا عزیز پهٔ ځان ناروا کړي دي



دروغژنې دې وعدې شوې انتظار ګوته پهٔ خولهٔ شهٔ
یو ځل نه پرله پسې شوې انتظار ګوته پهٔ خولهٔ شهٔ

دا دستور د پښتنو دے دا رواج زمونږ د کلی
اوس خبرې د جرګې شوې انتظار ګوته پهٔ خولهٔ شهٔ

مینه زړهٔ کښې غرغندې شوې ستا نه بېلې سرې لمبې شوې
دا لاځنګه ځنګه شپې شوې انتظار ګوته پهٔ خولهٔ شهٔ

لارې خارې لېونیه هغه نهٔ راځی زړګیه
د ماښام تېرې خورې شوې انتظار ګوته پهٔ خولهٔ شهٔ

دا چې راغلم مېخانې ته دا ئې غم غلطوومه
دا چې ماتې مې توبې شوې انتظار ګوته پهٔ خولهٔ شهٔ

پهٔ عزیز چې څهٔ راووشو واړه ستا د غاړې وشو
پهٔ ټول چم کښې ګنګوسې شوې انتظار ګوته پهٔ خولهٔ شهٔ



هغه تول د انصاف خامخا خراب شۀ
د خوانۍ ګناه پۀ ما باندې حساب شۀ

د احساس نه نا خبره شيخه ياره
څۀ خبر نې زما زړۀ کباب کباب شۀ

زه پخپله هم اشنا روړيا کوړيا شوم
نۀ ستا څېولـه ګلاب نۀ انقلاب شۀ

ما وې خم دې وې پۀ مخه دې رنا شه
د بوتکی پۀ سوري دغه سوال جواب شۀ

دا چې زۀ عزيز د خوده بوده لاړم
دا د بنګلی هر نظر شراب شراب شۀ



د امن باده پښتونخوا باندې راوانه لوتې
چاپېره الوزې پهٔ ما باندې راوانه لوتې .

ګولو بارودو د وطن مارغان ستې پتې کړل
لکه کوتره پهٔ هوا باندې راوانه لوتې

هر مازيګر پهٔ وينو سُور دے هر سحر خونړے
چرته کابل او پکتيا باندې راوانه لوتې

د کونډې خور د بورې مور په خاطر راشه کنه
د امن غمه پهٔ رښتيا باندې راوانهٔ لوتې

د خوشحالۍ د ودانۍ د سوکالۍ سپرليه
د پښتنو پهٔ خواوشا باندې راوانه لوتې

مينه سندره کړه شاعره د خيبر د سره
عزيزه ياره پهٔ چغا باندې راوانه لوتې



سبا کـه خیـری داسـې چـل کـوومـه
د جانـان کلـی تـه تکـل کـوومـه

د مـازیګر مانځـۀ لـه وروسـتو ځمـه
د ښـکلی یـار دیـدن اول کـوومـه

اوس پـۀ رښـنبا بـې وسـه شـوے یمـه
تاتـه خیـرې ځـان تـه کـنځـل کـوومـه

حجره کښې ناست یم خپل تاریخ زوتووم
کلـه تپـه کلـه متـل کـوومـه

نـه شـوه ملګـرو پیـژنـدلے یمـه
مینـه د میـنـې پـۀ بـدل کـوومـه

هغـه عزیـز یمـه زور شـوے نـۀ یـم
ویـښتو کـښې لاژې ول پـۀ ول کـوومـه



يـاره بېګـاه خـوب کـښېـې مـې ليـدلـې ئـې
نـن مـې پـه زړه ډېـر راوربـدلـې ئـې

څـه درسـره وکـړم راويخـبـږې نـه
يـه نـصيبه څـومره سـرخوړلـې ئـې

ځـان سـنګارولو بانـدې سـتړې شـوې
داسـې پـه جنجـال مـې اړولـې ئـې

سـتا کلـې تـه شـل ځلـه درغلـې يـم
وايـه کنـه تـه کلـه راغلـې ئـې

يـاره پـه ايمـان ئـې درتـه وايمـه
ښـکلې ئـې ښـاغلې، نـازولې ئـې

خپـل لـوفر لفنګ عزيـز نـه وايمـه
ټـول عمـر بـې کـاره ګرځېدلې ئـې



دنیا ډېره ده مکاره
وه زما ښکلیه یاره

دا ښکرې دا لوپټه ده
ما راوړې ستا دپاره

لس اتۀ ګامې منزل ته
شل دمې کووم پۀ لاره

پۀ ما مۀ کوه شکونه
لېونیانو کښې مې شماره

زما تاته انتظار وی
دا اتوار نه تر اتواره

عزیز زوړ شه او زړېږی
لا تراوسه بې روزګاره



ستا یادونه مازیګر راپسې راشي
یو دوه نه دی سراسر راپسې راشي

د پېریانو ماماګانو باچائي ده
مونږ راندۀ کړی جادوګر راپسې راشي

ستا نازونو ته ساده باده ښکارېږم
څۀ پۀ چل او پۀ هنر راپسې راشي

زۀ پۀ تشو لاسو هیڅ کولے نۀ شم
ارمانونه سم لښکر راپسې راشي

ماته وائي وایه وطن ستایه
پښتنانۀ د لر او بر راپسې راشي

دا چې ما د انتظار پۀ تال جوړه کړی
ستا اقرار او خپل باور راپسې راشي



نـه د خـان نـه د جهـان شـوم
پـه يـوه دوه کـښېـږ حېـران شـوم

د الفـت کلـي کـښې اوسـم
بـې دوتـره پکـښې خـان شـوم
پـه د روغـو اموختـه شـوم
يـاره زه هـم سـتا پـه شـان شـوم
تـه مريـد د درويـزه شـوې
زه سـپائي د پيـر روښـان شـوم
مـورې مالـه غـم پکـار دے
اوس د خيـره سـره خـوان شـوم
نـن سـبا پـه خپـل وطـن کـښې
سـم د پـوزې اويـزان شـوم

بنـه سـاده پـاده عزيـز ووم
په بې ايمانو کښې بې ايمان شوم



ورځ کښې شل ځله ماتېږم ورځ کښې شل ځله جوړېږم
د شپې نه راځي خوبونه ګولۍ وخورم اوده کېږم

دا چې هرځه په پیسو شو دا په څو شو دا په څو شو
ته به څنګه زما کېږې زه به څنګه ستا خپلېږم

د جهان غمونه ډېر شول اوس تري ساه اخستے نه شم
د جانان غمونو راشئ ګنې نن سبا مړ کېږم

د وطن باچا ته وایه د انصاف تله راواخله
د وطن مئینان تول که زه درنېږم که سپکېږم

نن سبا څنګه تېرېږي که رښتیا راباندې وائې
نن د پوزې اوېزان یم د سبا نه هم وېرېږم

اته پته درکومه که زما سره دې کار وی
محبت یمه احساس یم د عزیز زړه کښې اوسېږم



شیخ په غلطه د خطا دے سر پرې مه خوږوه
زما خالق زما اشنا دے سر پرې مۀ خوږوه

ما له ئې ژوند ماله احساس ما له جذبې راکړې
زما پۀ تن کښې زړۀ باچا دے سر پرې مه خوږوه

زۀ پۀ خلور کرته لاړمه هغه نۀ راځی
بې مروته بې وفا دے سر پرې مۀ خوږوه

نصیبه خپله برخه راکه سوچ پرې څۀ له کوې
چرته چې غم دے نو زما دے سر پرې مۀ خوږوه

تۀ نفرتونه خوروې زۀ محبت شیندمه
زمونږه کار جدا جدا دے سر پرې مۀ خوږوه

پۀ لېونو کښې د سپېڅلو جذبو تول مه کوه
عزیز د ټولو نه سېوا دے سر پرې مۀ خوږوه



عقل مې د مينې غلام کړے دے
دا مې خومره ښۀ انتظام کړے دے

ښکلو کۀ پۀ سمه کۀ پۀ غره کښې يئ
راشئ خپل زړګے مې نيلام کړے دے

هر ماښام پۀ طمع سحر شوے دے
هر سحر مې تاته ماښام کړے دے

خدائې خبر جواب بۀ ئې لاځنګه وي
ما ورته پۀ خط کښې سلام کړے دے

دا جهان او هغه جهان ستاسو شو
مونږ خو تول عمر ناکام کړے دے

ياره تا پۀ لمسه د پردو خلقو
هسې خپل عزيز دې بدنام کړے دے

# ائیډیل

لۀ مروته ډک سپېڅلے کردار
د محبت د رڼاګانو مینار
هغه د مینې د خلوص کړمار
چاخ چاخ روان د ژوند پرستو پۀ لار
په زړۀ نادان پۀ اداګانو هوښیار
سنګار سنګار دے بې سنګاره سنګار
زړګے ئې سوزې د احساس پۀ انګار
ما اظهار کړے هغۀ کړے اقرار
پښتون دے مینه راسره کړی پۀ جار
سترګې ئې ډکې لۀ حیا پۀ خُمار
خبرې یې داسې د نخترو شنهار
چې غلے ناست وی لګی ډېر مزیدار
پۀ وچو شونډو ئې د پاړونو قطار
پۀ ماله خپله څانه ګران دے کنه
عزیزه دغه مې جانان دے کنه



اوس هغه نه يم بدل شوے يمه
لږ غونډې نور کم عقل شوے يمه

په هره چاره کښې غل شوے يمه
شيخه چې تا سره تَل شوے يمه

مينې، احساس، خودي وژلے يمه
ځان له پخپله اجل شوے يمه

ستا په يو ځلې راکتلو اشنا
زهٔ خو خو ځله پاګل شوے يمه

عزيزه اوس مې هيرولے نهٔ شې
اوس دې په روح کښې شامل شوے يمه



تا پسې به څه ګرځم
بې له تا نه بنه ګرځم

ته چې بې وفا شولې
اوس به چا سره ګرځم
ستا په توده غېږه کښې
کېږی مې ساړه ګرځم
زه لکه د خپل ارمان
غوښې په چاړه ګرځم
زړونو ته ورکوز شمه
غرونو کښې چې وګرځم
شیخ سره مُلا سره
نه ګرځمه، نه ګرځم

هر چا ته عزیز یمه
یک یواځې نه ګرځم



ستا بې وفائي به راته ياده وي
خپله بې وسي به راته ياده وي

شيخه د ثواب او د ګناه قيصه
د ېره سرسري به راته ياده وي
يه زما سرلوړه پښتنو ورونو!
ستاسو سرکوزي به راته ياده وي
هرڅۀ به مې هېر شي دا هېرېږي نه
مينه، وررولي به راته ياده وي
هغه چې مې ستا پۀ نامه کړې ده
هغه شاعري به راته ياده وي
سر که مې د مرګ پۀ کمر ولګي
ستړې زندګي به راته ياده وي

خپله فقيري به رانه هېره شي
ستا عزيز خاني به راته ياده وي



ځوک چې د مینې وعدې سرته رسولے نۀ شي
هغه خپل ځان پۀ تومتونو رنګولے نۀ شي

دې پسې در پۀ در او خاورې پۀ سر وګرځېدۀ
زما پۀ شان بل لېونے پیدا کولے نۀ شي

زۀ کۀ خندلے نۀ شم دا نوې خبره نۀ ده
هغه د خپل حسن زوال باندې ژړلے نۀ شي

اوس دې پۀ خپلو اداګانو باندې اویر ېږه
چې ما غوندې باتریاګان هم غلولے نۀ شي

زما ملګرو دا شیخان خلق نور مۀ تنګوئ
دوئ بۀ جنت تۀ ځي نو ځکۀ شراب څښلے نۀ شي

اخر فطرت خپلۀ ترخه فیصله واوروله
عزیز هغه شۀ خو هغه عزیز کېدلے نۀ شي

## قطعه

د پلاستیک د کارخانو لوګو وهلی یاره
ستا په کړه وړه ځوانۍ به غزل څه ولیکم

زهٔ خو شاعر یم ما له ډېرې رنګینۍ پکار دی
د چاپېرچل په ناروغۍ به غزل څهٔ ولیکم

## قطعه

ما وې چې تا له به تنکۍ راوړمه
خو تنکۍ کالے دے په روپو کېږي

ستا دنګې پوزې ملامته کړمه
اوس به زما په حوصلو کېږي



خپل دې کۀ پردې لېونې شوې دې
دلته هر سړې لېونې شوې دې

پاتې شه جانانه دلته شپه وکه
لاره کښې يو شې لېونې شوې دې

سترګې دې خوړل بانۀ چيچل کوی
هم دې ميخکې لېونې شوې دې

نۀ منی لوفر زړګې مې نۀ منی
دا د خر بچې لېونې شوې دې

ګل بلبل ته غوږ کښې داسې اووئيل
دا خلې سپرلې لېونې شوې دې

ستا عزيز پښتو پښتونولۍ پسې
ګرځی لې پۀ لې لېونې شوې دې

# زړۀ لرمه

زړۀ لرمه زړۀ کښې جذبې لرمه
کۀ نور څۀ شته کۀ نشته هیلې پښتنې لرمه

ما پۀ خپلو اوښکو هر ارمان وینځلے دے
خپل غمونه خاندم ستا غم مې ژړلے دې

زړۀ لرمه زړۀ کښې جذبې لرمه
د اشنا یاده راشه خلاصې دروازې لرمه

شا بسې احساسه اور ته دې نیولے یم
تشه تورہ لاسه خپو نه دې تړلے یم

زړۀ لرمه زړۀ کښې جذبې لرمه
دا چې منزل ته خمه ژوند ته ارادې لرمه

ته رانه خارېږې تۀ رانه قربان ئې
تا سره مې لوظ دے ته زما جانان ئې

زړۀ لرمه زړۀ کښې جذبې لرمه
عزیزه یاره تا ته نیت د یارانې لرمه



سحر چې پاڅېدمه څکونه مې توبه اووېسته
چې مازیګر شۀ د توبو نه مې توبه اووېسته

زما جانانه بې ایمانه بیا بـه نۀ درځمه
ستاسو محلت ستاسو کوڅو نه مې توبه اووېسته

دا مې د خان سره اټلـه فیصله کړې ده
د ښاریو د یارانو نه مې توبه اووېسته

شیخه د مینې دا روزګار راته د کار ښکاره شو
نور د بېکاره ګرځېدو نه مې توبه اووېسته

نۀ ریاکار دی نۀ مکار دی لېونی ملګری
د غلچکو د پخېکو نه مې توبه اووېسته

چا چې د مینې پۀ نوم ټول عمر لوټلے یمه
عزیزه یاره د هغو نه مې توبه اووېسته



ستا چې لـه نظـره غورځېـدلے یـم
دا لکـه د غـره غورځېـدلے یـم

اوس رانـه بې غمـه شـه بې دمـه شـوم
یـاره سـتمګره غورځېـدلے یـم

تـهٔ د ښـکته ښـکته نـه راوختـې
زهٔ لـهٔ بـره بـره غورځېـدلے یـم

یـه غریبـی پـام کـوه پښتون یمـه
زهٔ ګـورے پـهٔ نـره غورځېـدلے یـم

زهٔ دې مینـه وال زهٔ دې عزیـز یمـه
وامـې وره خبـره غورځېـدلے یـم



ښکلو نور په څۀ کمزورے شوے یم
لږ غونډې په زړۀ کمزورے شوے یم

دا خو ښه ښکاره جاره خبره ده
سپین مې شو ویختۀ کمزورے شوے یم

او د سترګو جنګ کښې تاګټلې ده
دغه جنګ کښې زۀ کمزورے شوے یم

نور خو زۀ په هر چا زورور یمه
بس خو په هغه کمزورے شوے یم

دا چې نۀ رقیب او نۀ جانان لرم
پوهه شومه ښۀ کمزورے شوے یم

مرګ راته په چغو چغو اووئیل
زۀ په ژوندانۀ کمزورے شوے یم



دا چې اظهار شوې دې
څومره ښه کار شوې دې

پرونې تـول مـازيګر
ستا انتظار شوې دې

شپه او ورځ تا يادووم
دا مې روزګار شوې دې

ما شاعري کړې ده
غږه کښې چنار شوې دې

شيخه ته څه ئې خبر
زړه کښې مې غار شوې دې

زمانه لرې ګرځئ
ماته ازار شوے دے

راشه زمونږ کلي ته
بیرو کښې بار شوے دے

رقیبه ستاسو چم کښې
د عزیز یار شوے دے



نن راغلے ئې جانانه د سبا څۀ پته لګی
بیا بیا مۀ وایه چې څمه یاره بیا څۀ پته لګی

کلی وال مروتونه د ښار دوړو کښې ړاندۀ شو
اوس نۀ ستا څۀ پته لګی نۀ زما څۀ پته لګی

د جینۍ پۀ وار پیدا ئې رقیب جانه چې څۀ وائې
مخامخ یې راته وایه پښې شا څۀ پته لګی

دا تپوس زما نه مۀ کړئ چې پۀ کومه غاړه لاړم
زۀ د مینې بنجارې یم زما دا څۀ پته لګی

اوس د ښکلو د محفل نه لړ پۀ ډډه باندې ګرځه
یه ساده باده عزیزه د ادا څۀ پته لګی



کـه دی د سـمې کـه د غـرهٔ ښـکلی دی
ټولـه دنیـا کـښې پـښتانهٔ ښـکلی دی

یـاره رښـتیا رابانـدې څـهٔ لـه وائـې
دا پـسرلی سـتا نـه پـهٔ څـهٔ ښـکلی دی

سـاګ د شړشـمو د جـوارو ډوډۍ
ټینګـې شـوملې خـوارهٔ ماسـتهٔ ښـکلی دی

وطـن تـه راشـه مـسافره اشـنا
دلتـه هـوا دلتـه اوبـهٔ ښـکلی دی

خیـر دے د بـل چـا نـه پوښـتنه وکـړه
زمـا بریتونـه سـتا بانـهٔ ښـکلی دی

د سود او زیان حساب کتاب خبرې
د عزیز هسې هم مازغهٔ ښکلی دی



بس د یوې خبرې خیال ساتمه
د ریاکاره ځان په پال ساتمه

څه د جانان څه د جهان غمونه
په زړه کښې څومره لوئې جنجال ساتمه
یمه پښتون وطن پالنه کووم
ځان سره توره ساتم ډال ساتمه
زه د لوئیدیز نه ځکه اولوېږمه
چې ستا جمال او خپل جلال ساتمه
شیخانو ما نه په قلاره کینئ
مازغه پرکاله زړه لېوال ساتمه
کلونه وشو او مودې تېرې شوې
زه پخپل جیب کښې ستا رومال ساتمه

تا چې خپل ورور او خپل عزیز گڼمه
ځان په جذبو څومره سمبال ساتمه



کۀ د کلي کۀ د ښار دے لېونے
روغه خلقه زما يار دے لېونے

دا ئې کار دے محبت پۀ خلقو وېشي
خلق وائي چې اوزګار دے لېونے

دا چې خبرې ګرېوان هسکه غرې ګرځي
څو مره خوار څومره مالدار دے لېونے

څۀ پۀ زړۀ کوي نو هغه ئې پۀ خُله وي
چې کم عقل کۀ هوښيار دے لېونے

عزيز بيا پۀ لويه لاره کښې ولاړ دے
بيا د چا پۀ انتظار دے لېونے



ما خو درته شل ځله وئيلي دي
سترګې دې جانانه بلا ښکلي دي

دا چې سترغلې مې پرسېدلي دي
دا رانه خوبونه تختېدلي دي
ښکلي دي ښاغلي دي سپېځلي دي
دا پېغلې زلمي زمونږ د کلي دي
شا به کنه دوا رو له سا رۀ وشو
دلته جوړې واورې وربېدلي دي
هغه چې ئې زۀ لېونے کړے ووم
هغه اداګانې دې بائللي دي
مۀ وايه د ښار د خلقو مۀ وايه
ما پۀ څو خبرو پېژندلي دي

بيا عزيز پۀ لپو لپو ځکلي دي
چا ورسره سترګې جنګولي دي



چې ستا قيصه ده
شومره خوږه ده

د مينې جنګ کښې
زما پره ده

شل به ئې نۀ کړې
دانا پوره ده

کۀ غر اوچت دے
لار پرې پرته ده

پښتون کو ته شو
پښتو کره ده

پـــهٔ ونـــه دنگـــه
لـــهٔ رنگـــه ســـره ده

ښکـــه تیږیـــږی
بـــس گـــوزاره ده

عزیـــــزه راغلـــــه
د خنـــــدا شـــــنه ده



څوک چې هوښيار دے
نو هغه خوار دے

هاغه چې راغے
دغه مې يار دے

راکه رومال دې
زما پکار دے

مينه مړانه
دځوان سنګار دے

ستا لوپټه ده
زما دستار دے

زړۀ ته چې کوز شي
هغه فنکار دے

خدائي پيدا کړے
خمار، خمار دے

راځي چې څو تري
عزيز او ژوکار دے



بد يمه که ښه يمه
دغه يم چې څه يمه

دې مرګوني کلي کښې
غر د ژوندانه يمه
ته چې راته نه ګورې
تا ته په کاته يمه
څه چې مې په خُله راځي
دغسې په زړه يمه
داسې ئې جوړ کړے يم
اور يمه اوبه يمه
خوب کښې راويښېږمه
ويخه کښې اوده يمه

ستا نه که لوګے نه شوم
ستا عزيز به نه يمه



کلي وال یم غرځنې یم
په جذپو باندې ژوندې یم

چې پښتون شوم مسلمان یم
خامخا به میړنې یم

ته به کورنې زه حجره کښې
ته نې پېغله زه زلمې یم

د احساس تنور کښې بل شوم
د الفت د اور لوګې یم

زما کله اوره
ستا عزیز ستا لیونې یم



تا پسې مې ډېر ژړلي دي جانانه
سترګلې مې پړسېدلې دي جانانه

زۀ نور هېڅ سره نۀ شوم جوړېدلے
ګنې څومره څومره ښکلې دي جانانه

اوس پخپله خوښه ګرځه د زړۀ سره
بلا خلق بلا کلي دي جانانه

هغه تۀ چې به پۀ کومو لارو تللې
ټولې لارې مې څارلې دي جانانه

نور څۀ نۀ لرم پۀ دې باندې عزیز یم
کردارونه مې سپېڅلي دي جانانه

## دا به څۀ چل کیږي

زما مغرور پښتون جانان پوډري شوے دے
سم چکري شوے دے
دا بــه څــۀ چل کیږي

دا د پـــښتون وطـــن بچـے دے
پـۀ متهو کلک پـۀ زړۀ زمـرے دے
هائي هائي پۀ شنو بریتو زلمے دے
د مایوسۍ پۀ کلاشنکوف چارماري شوے دے
سم چکري شوے دے
دا بــه څــۀ چل کیږي

زمـا د ډېـرې مینـې یـار وو
پـهٔ قـد قامـت ونـه چنـار وو
پیدا ییـشی خمـار خمـار وو
اوس د پوډرو پهٔ لوګو کښې ستی شوے دے
سم چکری شوے دے
دا بـه ځهٔ چل کېږی

عالمـه څـهٔ کـانې را اوشـوې
هغـهٔ جرګـې او حجـرې څـهٔ شـوې
ډېـرې خبـرې مـې پـهٔ زړهٔ شـوې
دلته انصاف دلته قانون بازاری شوے دے
سم چکری شوے دے
دا بـه څه چل کېږی

کلـه باچـا کلـه فقیـر شـی
کلـه مریـد شی کلـه پیـر شی
کلـه غـزل لیکـی شـاعر شـی
هغـه عزیـز مـانیروال هـم اثری شـوے دے
سم چکری شوے دے
دا بـه ځهٔ چل کېږی

# اے د ښار دوکاندارانو

اے د ښار دوکاندارانو د دماغو مریضانو
نۀ پۀ غم کښې خفه کېږئ نۀ ښادۍ کښې خوشحالېږئ

نه د غرۀ پۀ سر تپه شوئ
نه د نمر پۀ تپ خوله شوي
نه خوشحاله نه خفه شوئ
نه شوئ ستړي نه دمه شوئ
نۀ غُصې نه چرته سرۀ شوئ
نۀ خندا نه چرته شنۀ شوئ
نۀ باران باندې لامدۀ شوئ
نۀ چنار لاندې اودۀ شوئ

زۀ خو تاسو ته حېران یم نۀ ژړېږئ نۀ خندېږئ
نۀ پۀ غم کښې خفه کېږئ نۀ ښادۍ کښې خوشحالېږئ
اے د ښار دوکاندارانو د دماغو مریضانو

نـه مـو ډاډې اچـولی
نه مو شنې چلې چیچلی
نـۀ خوړونـو کـښې لامبلـی
نۀ چینو کښې اوبۀ ځکلی
نـه یـۍ اونـو تـه ختلـی
اینځـران توتـان خـوړلی
نـۀ مـو سـتورو تـه کتلـی
چـې کـوهی تـه غورځېدلی
اینځـران توتـان خـوړلی
نۀ پۀ راز د ژوندون پوهې شوۍ نـه شـوۍ اوږی نـۀ مړېږۍ
نۀ پۀ غم کښې خفه کېږۍ نۀ ښادې کښې خوشحالېږۍ
اے د ښـار دوکانـدارانو د دمـاغو مریـضانو
نۀ وصال شته نۀ هجران شته
نۀ رقیب نۀ مو جانان شته
نۀ پردې او نۀ خپلوان شته
نۀ دوستان نۀ دښمنان شته
نه پـه تاسو څـه احسان شته
نه پـه چا مو څـه احسان شته
نه مو درد نۀ مو درمان شته
نۀ احساس او نۀ ارمان شته
زمـا وروڼـو عزیزانـو نـه پردې شوې نـه خپلېږۍ
نۀ پۀ غم کښې خفه کېږۍ نۀ ښادې کښې خوشحالېږۍ



وزګار ښۀ ووم پۀ روزګار کښې رانه هېر شوې
کلې واله یاره ښار کښې رانه هېر شوې

ما پۀ لپو لپو ښکل چې رایاد شې
عجیبه ده پۀ خمار کښې رانه هېر شوې

شیربانو لۀ شیره غونده کریکې باسي
یوسف خانه ګړمار کښې رانه هېر شوې

بې وفا بې مروته نۀ یم یاره
خو د سترې ژوند پۀ لار کښې رانه هېر شوې

وېش مې وکړو د ښو برخو فرښته یم
عزیز جانه په دې شمار کښې رانه هېر شوې



کله چې د یار محفل ته تلی یو
زۀ او رقیب دواړۀ ئې رټلی یو

هسې پۀ دې ښار کښې حسن چرته دے
مونږه پښتانۀ یو څکه ښکلی یو

ښکلو ستاسو هاغسې پۀ طمع یو
نۀ چرته کښې تلی نۀ راغلی یو

یه وطنه مونږ ستا حلالیان بچی
څو مره بدنصیبه سرخوړلی یو

واوره د غربت او محبت قیصه
یو راژوندی کړی بل وژلی یو

نن د وطن کانو بوتو اووئیل
خپل عزیز سندرو کښې ستائیلی یو



او او نیمخالے شومه
نه نه رازلمے شومه

روغ وکښې اوسېږمه
څکه لیونے شومه

عقل رانه تلے دے
اوس د کار سړے شومه

بیا ئې چې راووکاته
بیا په زړه نرے شومه

شاته شاته گورمه
اه شوم اسویلے شومه

نۀ شومه د هيڅ نۀ شوم
هسې لے پۀ لے شومه

تۀ مې شوې 'اجمل ختک'
زۀ دې 'تور لالے' شومه

زلفو کښې مې وکړه
ګل شومه سپرلے شومه

يمه د عزيز غزل
سر شوم سريالے شومه



هېڅ سره چل چلکے نه کووم
واخله زه په عقل باندې څۀ کووم

تۀ مې غورځولو پسې مۀ ګرځه
زۀ چې راپرېوزمه خاتۀ کووم

هغسې جانانه په زړو سترګو
اوس هم ستا سوچ ته تلۀ راتلۀ کووم

تۀ چې د ښولاندې کاتۀ کوې
زۀ به د انګورو نه اوبۀ کووم

څه! کخیرى خپل پښتون اشنا کړه
خپل مشرى زوئى له به واده کووم

دا زما عزیز دے ورته وګوره
دۀ سره خوږېر لیدۀ کاتۀ کووم

# لـوبـه

چـې زهٔ کلـه زلمـے ووم چـې تـهٔ کلـه جینـۍ وې
زهٔ ښـومره لېـونے ووم تـهٔ ښـومره لېـونۍ وې

نخـرې بـه دې کـولې
پېـښې بـه دې کـولې
خیـرې بـه دې کـولې

مـا ښـومره ورانـې کـړې سـتا جـوړې کـوټنۍ وې
زهٔ ښـومره لېـونے ووم تـه ښـومره لېـونۍ وې

لوونـه چـې بـه وشـو
غوبلونـه چـې بـه وشـو
غـنم چـې بـه راشـۀ شـو

هر کور کښې مروندې وې هر کور کښې به چورۍ وې
زهٔ ښـومره لېـونے ووم تـه ښـومره لېـونۍ وې

هر کلي کښې پيريان وو
اکثر پکښې هندوان وو
زمونږه ماماګان وو

يوه بدرې جماله — ځلور ئې سيهلۍ وې
زۀ ځومره لېونے ووم — ته ځومره لېونۍ وې

ژوند ځۀ د ناداني وو
وادۀ ستا د ګوډي وو
کوڅا د مانيري وو

ښادۍ وه خوشحالي وه — ريوړۍ وې شيريني وې
زۀ ځومره لېونے ووم — ته ځومره لېونۍ وې

لاس اوس هم ستا عزيز يم
تراوسه يو مخيز يم
پۀ غاړه دې تاويز يم

زۀ ډېر ساده باده ووم — تۀ ډېره جنګيالۍ وې
زۀ ځومره لېونے ووم — ته ځومره لېونۍ وې



داسې غاړه غټې ښه يو
نن به يو سبا به نه يو

د جذبو سينو کښې زړونه
د احساس سر کښې مازغه يو

مونږ راپاسوه ژوندونه
د مرګ غېږه کښې اوده يو

مونږ په پوره سپوره نه يو
خو په مينه چې ماړه يو

شيخه غلې رانه کښېنه
نه راندۀ يو نه کاڼه يو

ملامتــه چاتــه نــۀ شــو
لويــه خدايــه پــښتانۀ يــو

څـــۀ خبرئـــې زلميتوبـــۀ
پـــۀ اوربو د بـــاد ســـوارۀ يـــو

ښـکلې سترګې کـۀ بانـه يـو
د عزيز غـزل کـښې شتـۀ يـو

## قطعه

دا خیچختوب د پسرلی ژوندون ښکلا وژنی
ملګرو تاسو وژنی، ما وژنی، دنیا وژنی

دا شور دا چغې دا لوګی د مشینونو ګرزا
کۀ نن مو نۀ وژنی سبا مو خامخا وژنی

# پالیشي

پالیش پالیش ښکلې پالیش
دا د چا د زړه قطره ده
دا د چا د وینې رنګ دے
دا د چا د ژوند امید دے
بې وسې سره په جنګ دے
دا د چا د سترګو تور دے
دا د چا د زړهٔ درمان دے
د پالیش پیتې په غاړه
زړهٔ د چا ودلے راروان دے
کړې بې واره اوازونه
پالیش، پالیش، ښکلې پالیش

د طـــوطي ژبـــه ئـــې زده ده
کـړې خـوږې خـوږې خبـرې
خـو پـۀ هـر چـا بـدې لګـی
دا وړې وړې خبــــــرې
پـۀ جـامو خیـرن خـیـچن دے
د سـپیرۀ بابــا بچـے دے
بـدې ورځـې لـوږې تندې
تـرې جـوړ کـړے پخـنکے دے
پـه شـپیلی کـښي اړوینـه
پالیشو پـالیش، ښپلـی پـالیش

بـازارونو کـښي ګرځـېږي
پـۀ وړوکـی زړۀ داغلـے
د هـر چـا مخـې تـه زغلـی
خبـتـه وړے زېـړ زبـیخلے
د دۀ هرڅـوک مامـا جـی دے
ددۀ هـر څـوک کاکـا جـی دے
کاکـاګـانو، ماماګـانو
دے د ټولـو پالیـشی دے
هـے توبـه ګرانـه ژوندونـه
پـالیش، پـالیش، ښپلـی پـالیش

اخترونو ته خوشحاله
د هر چا څپلې پالیش کړي
ددۀ خپلې څپلې نشته
د دنیا څپلې پالیش کړي
پۀ دؤ دؤ پۀ منډه منډه
اخوا دېخوا آوازونه
خو پۀ پتمه پتمه ژاړي
خپلې برخې قسمتونه
دا دي ستاسو اخترونه
پالیش، پالیش، څپلې پالیش



ماشومان خو مینه غواړي
دے د اوسه پۀ خوارۍ دے
پۀ دې خپل جنت وطن کښې
ځان ته ورے حېرانۍ دے
د ظالم نظام دلاسه
در پۀ در خاورې پۀ سر دے
اے ملګرو سترګه ورو
دے زمونږ نه مرور دے
مونږ نه غواړي کتابونه
پالیش، پالیش، څپلې پالیش

# زما خویندې

مخ ته مې ګوري زما لاسو ته ئې کتلې نۀ دي
زما خوريانو چرې مانه څۀ غوښتلي نۀ دي

هر وختې، هر ساعتې دغه دعاګانې کوي
زمونږ ورور دې پۀ تيارو کښې رڼاګانې کوي



شابه شابه زېړے نمر د ګوتو ووځي
ساقي جانه مازيګر د ګوتو ووځي

د ناصح ارمان به هله پوره کېږي
زلميتوب چې خومره زر د ګوتو ووځي
ستا د ميني ښاپيرۍ راباندې ناست دی
نن سبا کښې دا خبر د ګوتو ووځي
خفه نشې خو رښتيا خبره دا ده
اداګانې دې اکثر د ګوتو ووځي
زما زړۀ راتختول خو ډېر اسان دی
ګرانه ستا په يو نظر د ګوتو ووځي
ناداني دلاسه لاړه لکه داسې
د باچا نه چې لښکر د ګوتو ووځي

اے عزيزه پرګنيز بابا له ورشه
ورته وايه لر او بر د ګوتو ووځي



د زړهٔ دشتې ته ګډېږي دا سرې
پهٔ اعصابو مې خورېږي دا سرې

دعاګانې او ښيرې مې ورته وکړې
نهٔ پردے شو نهٔ خپلېږي دا سرې

ما پهٔ ښار کښې ئې تپوس د چا نه وکړو
وې چې غرونو کښې اوسېږي دا سرې

پهٔ پوچې خبره مرور شي
ډېر پهٔ لږ خهٔ خوشحالېږي دا سرې

دا چې زهٔ تربنه پهٔ شل ځله ځارېږم
د وطن نه قربانېږي دا سرې

خپل ساده باده عزيز ته حېرانېږم
خدايه کله به پوهېږي دا سرې



یاد مې شو په لار کلی کښې پاتې شو
زړهٔ رانه د یار کلی کښې پاتې شو

داسې د ښار شور لے پهٔ لے کړے یم
مانه خپل اختیار کلی کښې پاتې شو

یاره هغه غم ښادي، حجره، جمات
ښکه ښهٔ روزګار کلی کښې پاتې شو

ستا نه د لوظونو ژبه هېره شوه
مانه انتظار کلی کښې پاتې شو

ښار کښې بوډاګانو چغې جوړې کړې
یره نصیب دار کلی کښې پاتې شو

هغه چې لهٔ ځانه هم ورک شوے دے
هغه عزیز خوار کلی کښې پاتې شو

# د بونير په لور

نن د بونير د رنګينو مېلمه يم
د کلکو کلکو پښتنو مېلمه يم
د غرۀ په سر د پسرلو مېلمه يم
بس د فطرت د نندارو مېلمه يم

منم چې دلته رنګيني اوسېږي
په دغه ونو کښې مستي اوسېږي
دغه چوپال کښې غرخني اوسېږي
هغه بابا دغه ابي اوسېږي

ترينه لوګې شمه د ځوانو حوصلو مېلمه يم
غرۀ د قدم لاندې کوي د بريالو مېلمه يم

هغه واورينې سر درې ښکارېږي
دغه وريځې سمې شپې ښکارېږي

ښکته په څوکه کښې ښېږې ښکارېږي
وګوره چم د پښتنې ښکارېږي

زړګیه پرېږده وس دلته د زړګو مېلمه یم
ځان چې د بله ځاروي د ننګیالو مېلمه یم

یخ یخ بادونه چارچاپېره رانه
غلي شورونه چارچاپېره رانه
تول ښا بستونه چارچاپېره رانه
د چا یادونه چارچاپېره رانه

دا چې په بره بره راغلې د مرغو مېلمه یم
دا چې په ښکته ښکته لاړې د چینو مېلمه یم

چې هواګانې مستې شولې
دلته نختري جوختې جوختې شولې
د هجرې زلفې پرانستې شولې
چې زۀ ئې ولیدمه سوختې شولې

عزیزه څنګه د حیا او د پښتو مېلمه یم
ارمان سبا به تر ښه څمه! د لمحو مېلمه یم

# قطعه

پټ پۀ پټه یاره راشه
یوه شپه د ښاره راشه

ددې غرونو خاموشۍ ته
د سپوږمۍ پۀ لاره راشه

❋❋❋

مونږ ټول پۀ یوه مینه ګناهګار یو
ښه ښکاره او ښه په ډاګه ښۀ په جار وایو

مونږ د ټول انسانیت پۀ مخ مئین یو
هېڅ بې هېڅه د اشنا سترګو کښې خار یو



دا مابنام چې مازیګر ته غاړه وځی
ستا یادونه مې ځیګر ته غاړه وځی

د سپوږمۍ د رڼا راز راته معلوم شهٔ
دا هم پټ پهٔ پټه نمر ته غاړه وځی
پسرلے پهٔ رنګلۍ پاندې رامات شه
مئینان د سترګو شر ته غاړه وځی
لر و بر و یوه ورځ به داسې راشی
چې کابل به پېښور ته غاړه وځی
هم هغه خلق د کلی در پهٔ در شی
چې د سرو ګلونو کر ته غاړه وځی
وځی وځی بختورو سره وځی
ښکلی مونږه سره چرته غاړه وځی

غنم رنګه یاره ستا د زړهٔ دپاره
عزیز ستاسو تول تبر ته غاړه وځی

# یو یاد

ددې ماښام په نوم
د چا د خښو سیورے
لکه سکنی په اوربل
سره لوپټه خوره کړې
لمبه لمبه ګوتونه
شاعر زړګے غلووم
یادونه ومې چهړې
د چا د راز خبرې
د مینې ډکې وعدې
هغه په چپه چپه
پټ د بوتکی په سوری
خوږې خوږې خبرې
جذبې جذبې خبرې
ځنګ پښتنې خبرې
په غلې غلې ژبه

پۀ ساه نيولې ژبه
راته حالونه وائي
د وير ژړلې کلي
د زړۀ چاودلي ژوندون
حوصلې! پاسه پاسه
لېونتوب ولتېوه
زلميتوب ستړے نۀ شي
زۀ ورته څۀ اووايم
باده پۀ مخه دې شه
زما رڼا فکرونه
واخله د ځانه سره
جانان ته غلې وايه
هغه لوظونه مې ياد
کلک قسمونه مې ياد
زما نه، نۀ هېرېږي
خزان ځپلې کوڅې
ستا بې ګلونو اوربل
ستا بې اسرې ملګرے
لنډه دا ځان سره به

سمسور سپرلے درولم.



جانانه تکه توره شپه ده مانه مۀ شرمېږه
زمونږ د دوارو يو جذبه ده مانه مۀ شرمېږه

ځواني راوشينده ستړيا د زلميتوب دمه کړه
پۀ پېغلتوب دې زلزله ده مانه مۀ شرمېږه

شونډې راجوختې که پۀ زړونو رېندے راوله
د وارخطا مينې چپه ده مانه مۀ شرمېږمه

غېږې راواچوه دستور د بېلتانۀ ماتوو
بې خودۍ کړې فيصله ده مانه مۀ شرمېږه

پۀ لېوني ماحول کښې څۀ له پټ پټاني کوې
حيا دې ډېره پښتنه ده مانه مۀ شرمېږه

د تومتونو ګمانونو اندېښنو کلی کښې
عزيزه څومره عجيبه ده مانه مۀ شرمېږه

## د ملګري نصیر خیام په یاد

زما ملګریه د لارې ما لیدلے نۀ وې
خو پاکې مینې لاس نیولے در له راوستمه

زما او ستا تړون په څۀ دے پېژندے په څه شو
نن دې په قبر د هغې جذبې ګلان شیندمه

***

## د ډاکټر نجیب په مرګ

خو پۀ چا کېنې چې دے زور د هغو کور دے
د ملګرو ملتو نه مې زړۀ تور دے

د کچرو سامراجانو پۀ ډالرو
خپلو ورونو پۀ دار کړے سکه ورور دے

# لوبه

پهٔ دې پښتون کلی به راشی قیامتونه
لوظونه مه ماتوه
د پُښتنی روایت مهٔ اخله ازارونه
لوظونه مهٔ ماتوه

د پښتنو دا حقیقت دے
یو آزادی زمونږ فطرت دے
د غلامئ نه مو نفرت دے
هسې نه هر څهٔ باندې وشی فساتونه
لوظونه مه ماتوه

ښکلے پښتون مازیګرے دے
وعدې رایادې کړه سپرلے دے

ستر ګې په لار درته زړګے دے
دا ګورے ډېر ملامتے دے
چې پښتانهٔ وی نو وعدې پوره کوینه
لوظونه مهٔ ماتوه

دلته کښې خان بائللے کېږی
خو یو جانان ګټلے کېږی
د مینې نوم پاللے کېږی
خپل اباسین به چرته سترګې لګوینه
لوظونه مه ماتوه

دا تاتره دغه خیبر دے
کلی باندې کهٔ پښور دے
پښتون کهٔ لر دے او کهٔ بر دے
یو ئې قانون یو ئې دستور دے
عزیز کوی درته جولۍ او منتونه
لوظونه مه ماتوه

# راجنه مینه

د زړهٔ پهٔ وران کنډر کښې
د چا د مینې شور دے
سلګۍ سلګۍ مینه ده
څه لېونۍ مینه ده
داسې چړچقې کوی
د ضبط بندونه شلوی
داسې باغی جذبې دی
داسې باغی فکرونه
د زړهٔ کوڅې ډکې دی
چارچاپېره
پهٔ هنګامو د مینې
نعرې سورې وهی

د سره تېرې چغې
زلمي زړګي ويخوي
غلام قانون نۀ مني
ساده باده دنيا کښې
هغه د مکر قانون
هغه د جبر قانون
جانان پۀ جار غواړي
يا خان پۀ دار غواړي
خو!
چې دا د چا مينه ده
رښتيا رښتيا مينه ده
ژوند له ژوندون لټوي
پۀ مرګونی ګوګل کښې
تورتم مرنی ګوګل کښې
يو لېوتوب خوروي
پۀ دروازو د ذهن
پۀ بر لکو د احساس
راپنډې شوې جذبې
پۀ چغو چغو

پهٔ تاوه تاوه
دا تول رسمونه شړی
دا رواجونه شړی
تېرې تېرې وهمونه
د بې وسۍ خپسه
پاسې د ژوند د مرۍ
اوس د مئين زړګی
پهٔ يخه يخه سيمه
داسې ډيوې بلې دی
مينه ګرمېږی ورته
چې دا د چا مينه ده
ډېره رښتيا مينه ده.



د نادانۍ هغه قیصې د ګوتو اووتلې
څومره خوږې خوږې لمحې د ګوتو اووتلې

ما خپلولې ولې تا پردے کولم اشنا
ستا نه پۀ دې مانه په دې د ګوتو اووتلې

چې زلمیتوب او لیونتوب راسره پاتې نۀ شو
هغه خمار هغه نشې د ګوتو اووتلې

زۀ د حالاتو سوراړه ته ساه نیولے ناست یم
ستا هم نازونه هم نخرې د ګوتو اووتلې

اوس په دې کلي کښې هر څوک د څان خبره کوي
عزیزه یاره یارانې د ګوتو اووتلې



تـــا نـــشه نـــشه کتـــل
مـــا پـــهٔ لپـــو لپـــو څکـــل

دغـــه نـــولس ده دنيـــا
يـــاره هيڅـــا نـــهٔ کـــړه شـــل

زمـــا ژونـــد کـــښې خوشحالی
پـــهٔ اينځـــر کـــښې لکـــه ګـــل

د ځـــوانی خـــوږې قيـــصې
پـــهٔ پيـــرۍ کـــښې يـــادول

څـــو مره بنـــهٔ لګـــی اشـــنا
ستاســـو کلـــی تـــه درتلـــل

ستا نازونه اداګانې
بې دونى زما غزل

خپل عمل د لارې مل
ما کړلى ما ربل

پيدا کېږى چرته نه
د عزيز په شانې بل



کله کله سترګې توروه
کله کله زړونه تختوه

يه جانانه دومره خو کوه
ما چرته په هېره يادوه

زۀ لۀ چانه نۀ غواړم ساقي
تۀ پخپله خوښه راکوه

بيا بيا تپوسونه مۀ کوه
ما د ښکلو کلي ته بوځه

تاله به راوړمه لوبتمه
لاړمه دعا راته کوه

زۀ ترې غزلونه جوړوم
ښکليه لوظونه ماتوه

وایــو پــسرلی تــه هــر کلے
شــا بـه لېــونی راتهولـــوه

راغــے پــه شــېبو شــېبو بــاران
خــان زمــا شــړی کــبنې پتهــوه

یـــاره دا پـــردی راخپلـــوه
مینـــه لاس نیـــولې ګرځـــوه

نــهٔ کبــړی عزیــزه پــهٔ منــت
کـــوډې تعویزونـــه پـــرې کـــوه



کـــه وطـــن دے کـــهٔ جانـــان
يو مې روح دے بل مې ځان

د بنا ښست نـــه دې لــوګے
د ادا نـــــــه دې قربـــــــان

غريبـــى د نــــر بچـــى
تــــا ګـــټلے دے ميـــدان

زهٔ د مينـــــې بنجــــارې
زمـــا ګټـــه پـــهٔ تـــاوان

کهٔ پهٔ سوات کښې دې منې
پـــهٔ مـــابڼ کـــښې اينځـــران

د زلمـــو زامنـــو پــــلار
لاتراوســـه يمـــه ځـــوان

پښتونخوا ستا په سینه
شل سیندونه راروان

دا یوه خبره واوره
زۀ یم زمکه تۀ اسمان

یو پاګل راته وئیل
ستا عزیز زما په شان

## قطعه

يو مې د اوښکو اسويلو او د سلګو ظلمونه
بل مې نيمګړې ارمانونه او دا تش لاسونه

خالي لاسونه وسيد نه بازارې دنيا کښې
نادان زړګے مې رانه غواړي رنګ په رنګ څيزونه

## قطعه

تا لـه بـه څنګـه لوپټـۀ راوړمـه
چې د حيـا نـه پـرې کتـل پټـوې

ګلـه قـسم دے چې واپـس راځمـه
پـۀ سور سپرلی بـه خپـل وربـل پټـوې

# لــوبــه

زړګیه داسې وخت کښې لاړې پاګل شوې
بیکیانې ګل شوې
بیکیانې ګل شوې

دا چــې زړېـــږم اشــنـا
دومـــره پــوهېږم اشــنـا
د غریبـی لـهٔ تـسه لـهٔ مانـه بېـل شـوې
بیکیانې ګل شوې

دا پــهٔ مــا څــهٔ شــوی دی
څــهٔ چــې دی بــهٔ شــوی دی
زهٔ دې د ســترګو ازغـے تـهٔ مـې ګوګـل شـوې
بیکیانې ګل شوې

تالـــه تتکـــی جــوړوم
درلـــه ســـیالی جــوړوم
د برغنـډی وربـشې ســتا د چارګـل شــوې
بیکیانې ګل شوې

موســـم جامونـــه ویـــشی
محبتونـــــه وبـــــشی
عزیــزه پیــژنم دې د مینـــې غـل شــوې
بیکیانې ګل شوې



ستا پهٔ انتظار خوشحاله يم
ورځ ده د اتوار خوشحاله يم

کلي کښې پرانستې تنې ګرځمه
مينه مې روزګار خوشحاله يم

او کنه د مينې لېونو سره
وايمه پهٔ جار خوشحاله يم

ځمه! تاله چائې او پراټې راوړم
مهٔ کوه تلوار خوشحاله يم

ډېرې مودې ډېر کلونه پس
راغے زما يار خوشحاله يم

دا دے اباسین دغه بونیر او سوات
خوا کښې ګرځمار خوشحاله یم

سر مې شۀ بمبل ګیره مې سپینه شوه
نۀ شومه هوښیار خوشحاله یم

ښکلو پسې در پۀ در او لے پۀ لے
ګرځمه بیمار خوشحاله یم

زۀ دې د وجود عزیزه سورے یم
تا سره پۀ دار خوشحاله یم



دا د لېونتوب چې پۀ ما راځي
کله کله خان پورې خندا راځي

ورشه رقيبانو ته مې اووايه
نن به زمونږ کلي ته اشنا راځي

هر چا ته د زړۀ خبرې وکړمه
ما له نۀ دروغ او نۀ رښتيا راځي

څاڅکي شو شيبې شولې حجرې ته څم
يار مې پۀ باران کښې خامخا راځي

ګرځمه د مينې تُخم نولمه
نور څۀ راله نۀ راځي بس دا راځي

بيا به ورته تېول ښکلي راټول کړمه
دا زما عزيز چې کله بيا راځي



چې وطن درته یادېږی مسافره
بیا په تا څنګه تېرېږی مسافره

سر دې سپین خرمن دې توره شوه جانانه
چنغله دې هم زېږېږی مسافره
مازیګر شهٔ د باران وریځې راغلې
لټ په لټ اسمان پرقېږی مسافره
وایه وایه د ابی دادا کورونه
پردی خلق نهٔ خپلېږی مسافره
هلته روغ هم لېونی شی د زړهٔ سره
لېونی دلته رغېږی مسافره
د مابڼې تر کړماره درته وایم
شل خوړونه رابهېږی مسافره
د خوږو تینګو شوملو چاتی پرته ده
ساګ شهٔ پوخ ډوډۍ پخېږی مسافره

ستا عزیز ستړے ستومانه کورته راغے
خپل بچی ترې چاپېرېږی مسافره

# قطعه

خیر دے یو خل به سره ګلان شي پښتنې وینې دی
د پښتنو زلمو رګونو کښې تودې وینې دی

د وطن ناوې چې ملاله نۀ شې سیاله به شې
د مزدورانو، دهقانانو پرګنې وینې دی

# لـــوبه



پـهٔ خپـل ریمـن پړونـی سپین مـخ پټوینـه
وړ کــبنې وړی ټولوینــه    وړ کــبنې وړی ټولوینــه

خدایه د جیټ پهٔ سرو غرمو کښې
خپـې ابلـه ګرځـي کـاریزو کـې
متـې رابنـکلې لیچـې تـشې ګرځوینـه
وړ کــبنې وړی ټولوینــه    وړ کــبنې وړی ټولوینــه

اور د اســمانه راوریــږی
مرغــی پــهٔ اونــو کــبنې پټیــږی
لــوزې مچــی خپلــې وزرې غړوینــه
وړ کــبنې وړی ټولوینــه    وړ کــبنې وړی ټولوینــه

بـــل د پیریـــانو تنورونــــه
د ګوګوشـــتانو اوازونـــه

شپون په شپېلۍ کښې خپل ارمان ټپه کوینه
وړ کـــښې وړې ټولوینـــه وړ کـــښې وړې ټولوینـــه

جینـــۍ د اوســـه خوشـــحالېږي
د ورور وادهٔ کـــښې بـــه ګـــډېږي

خپلې ورونداري له به نخښې ورکوینه
وړ کـــښې وړې ټولوینـــه وړ کـــښې وړې ټولوینـــه



دا چې بې مجاله ګرځمه
تا پسې لېواله ګرځمه

هره کوڅه هره لاره پېژنم
مینې له وفاله ګرځمه
سپینې سپوږمۍ دومره ورته اووایه
خوب نۀ راځي ماله ګرځمه
ښکلیه ستا خندا کښې تندرونه دي
زۀ جوړوم جاله ګرځمه
نۀ خمه ښارونو ته وېرېږمه
غرونو کښې خوشحاله ګرځمه
ګرانه یاره لاړم تا به غواړمه
خمه پیر بابا له ګرځمه

ستا د غزلونو سندرغاړے یم
راشه مانیرواله ګرځمه



د ځــوانۍ هغــه وختونــه
د یــارانو محفلونــه

ســلامونه دعاګــاني
دعاګــاني ســلامونه

واورې هلــه ویلــې کېــږي
چــې پــرې وشــي بارانونــه

ستا په سترګو کښې ښکارېږي
د ســوالونو جوابونــه

دا دے وګــوره مابنــام شــو
دا دي راغلــل ســتا یادونــه

چارچـــاپېره ښائـــستونه
د ســـپرلی علامتونـــــه

د جانـــان د لـــوری بـــاده
راتـــه اووایـــه حالونـــه

ستاســو کلـــی کــښې جانانــه
غـــنم رنګـــه دی رنګونـــه

نـــور بـــه څـــۀ درکړمـــه واخلـــه
ســـتا د خپـــل عزیـــز شـــعرونه

## قطعه

ته د خان یې زهٔ د یار زهٔ د جهان یم
ما په دې باندې ثابته کړه انسان یم

ستا ځنګل دے زما کلے وطن نشته
ځناور یې زورور ئې زهٔ ناتوان یم

# ستا د کلي لاره

ســــتا د کلـــــي لاره ده
ډېـــــره مزيـــــداره ده
ښـــکلې ده ګلـــداره ده
ډېـــــره مزيـــــداره ده

غرونـــه ابـــشارونه دي
دنـګ دنـګ نخترونـــه دي
دا ورې ورې بانـــــــډې
خـړ خـړ ئـې کورونـه دي
ښه شوه د مارغانو ژندګي پکښې قراره ده
ستا د کلي لاره ده

ډلـــې د زلمـــو ګرځـــي
تـــول پـــهٔ خپلـــو ګرځـــي
سيـــل د تـــاروګو ګرځـــي
جرنـــدې پـــهٔ اوبـــو ګرځـــي
دغه د اينځرونه پهٔ تولو کښې بارداره ده
ستا د کلي لاره ده

دا بـــوتې ګـــوراج کـــوی
تـول ئـې وخـوری مـاج کـوی
بګنـــړې کروســـکې دی
دا خلـــق پـــرې راج کـــوی
بس د متـورو زلمـو برخـه پکښې خواره ده
ستا د کلی لاره ده

کـــار د کـــور بـــوډی کـــوی
ښـه کتـوی خمڅـی کـوی
پېغلـــې تنـــور واچـــوی
ښـــې پـــستې ډوډی کـــوی
راشه بانډچی د ښار د ښځې نه هوښیاره ده
ستا د کلی لاره ده

کلـی کـښې چـې تنـګ شمه
ځـان سـره پـۀ جنـګ شـمه
راشـــم بـــادوانی پلـــه
تـــول لاچـــی لونـــګ شـــمه
هـره یـو لمحه مـې اشنا سـتا د زړۀ دپـاره ده
ستا د کلی لاره ده

# بدلون

دا زما د شعور چغه
دا زما د زړه اواز دے
دا پښتو ده دا ایمان دے
د زړهٔ چاودی ژوندون راز دے
کهٔ پرې مرمه کهٔ پرې چومه
دا نظام به بدلومه
دا نظام به بدلوومه

دې نظام کښې وحشتونه
دې نظام کښې فریبونه
دې نظام کښې ظلمتونه
دې نظام کښې زنځیرونه
ژوند به ښکه تېروومه
دا نظام به بدلومه

دا نظام خو ځناور دے
هر وګړے ترې خبر دے
دے د مينې نه منکر دے
دے کافر دے، دے کافر دے
ځان به دار ته خېژومه
دا نظام به بدلومه

دا نظام زما قاتل دے
نن قاتل سبا قاتل دے
ورور قاتل اشنا قاتل دے
دا خپل ژوند زما قاتل دے
دا زلمي بېداروومه
دا نظام به بدلومه

دا نظام توره بلا ده
هره خوا ژړا ژړا ده
هره ورځ ئې بې وفا ده
هره مينه وارخطا ده
خپلې وينې به شيندمه
دا نظام به بدلومه

دا نظام خو سړی خور دے
جدا کړے ورور د ورور دے
زوئے پر دے د خپلې مور دے
بس هم دا راته پېغور دے
سُور سپرلے به راولمه
دا نظام به بدلومه

## ښښتانۀ یادونه

ستا یادونه ښښتانۀ دی
ما سره مینه پالی
لارې د زړه پېژنی
درانۀ کاتۀ پېژنی
هغوئ پرې هم پوهېږی
څنګه چې زۀ پوهېږم
چرته د مینې ګریوان
ریخې ریخې نۀ شی
چرته د مینې دستور
ټوټې ټوټې نۀ شی
څکه خو پرله پسې
ماله ډالۍ راوړی
پۀ تور ماښام راشی

خوبونه وتختوي

بس راتر غاړه وځي

د غوږ خبرې وکړو

د خاموشۍ په شور کښې

هغه زړې خبرې

د یخې شپې خبرې

یره رښتیا

پښتونولي پېژني

مینې له مینه راوړي

په ځان بدل نه پرېږدي

مینه کښې چل نه پرېږدي

داسې ساده یادونه

څنګه چې زه ساده یم

زما د ژوند ملګري

زمونږه کلے کېږي

تپوس پوښتنه کوي

ما سره شپې تېروي

پاکې جذبې ګرموي

فراق للو للو کړي

ناقلارې اوده کړی

پښتون زړګے خوشحال شی

خپلې تمبې لرې کړی

رازونه ټول پرانیزی

غېږې خورې ورې کړی

دا باترِیا احساس مې

سم لبونے د مینې

ستا د یادونو په شان

# هنداره

گمان حرام دے
شک بزدلي ده
وهم گناه ده
کۀ دا دروغ وي
تۀ ئې بې پته
تۀ دروغژن يې
پۀ زړه خيرن ئې
پۀ زړۀ خيرن ئې

نو!
زۀ گناهگار شوم
پۀ پښتو خوار شوم
د روح بيمار شوم

خو!
که دا رښتیا وی
احساس دې غل وی
خلوص دې شل وی
زړهٔ کښې دې بل وی
نو بیا زهٔ پهٔ رښتیا یم
پښتون پیدا یم
د روح رنها یم.

# د شیر علی باچا په یاد کښې

ډېر ساده باده پښتون وو
خو سقراط وو افلاطون وو

مرګ ئې نهٔ شي مړ کولے
شیر علي باچا ژوندون وو

## قطعه

پښتانهٔ غرونه د پوزې اوېزان دي
مونږ خپل سپېڅلې روایت سره دهوکه کړې ده

د جنت دروازه بقه خولهٔ پرته ده
پښتون بچي چرته خودکشه دهماکه کړې ده

# قطعه

(د رياض خان (باجا) چې زمونږ د تول قام قلم صوابۍ په شريکه ملګرے وو، په ياد کښې دا شعرونه د هغۀ د قبر په کتبه هم ليکلې شوې دي)



دا ايمل، دريا، سالار خو بابا جان وو
دے په خپلو او خپلوانو شومره ګران وو

محبت وو، صداقت وو، خاکساري وه
ډېر ساده باده او سپين سپېڅلے ځوان وو

اے لحده! ګورے خاورې درنه نۀ شي
رياض خان خو د تول قام قلم جانان وو



د جانان غمه د جهان غم سره یوځائې راشه
د جهان غمه دې نادان غم سره یوځائې راشه

په پښتون لوظ مې اعتبار دے تر سبا ماښامه
خو ماښامه اوس راروان غم سره یوځائې راشه

زما د زړه لارې اشنا دی تاسو وپېژندې
غمِ دورانه د ګران غم سره یوځائې راشه

قیصه زړه ده لېونتوبه ما پرې مۀ ګرموه
بس د نیمګړی ارمان غم سره یوځائې راشه

ګرانه راچاخ شه چې د لارې ملګرتیا وپالو
زړګیه خپل مهربان غم سره یوځائې راشه

حوصلې لاړلې عزیز سره اوږه په اوږه
کلکه همته حېران غم سره یوځائې راشه



لېـړ راپخـلا شـه لېـوني ژوندونـه
ذرې ذرې پـوتې پـوتې ژوندونـه

بې وفـائي ونـهٔ کـړې مينـې سـره
زمـا خـود دار زمـا مـرۍ ژوندونـه

زمونږه لـوظ وو چـې منـزل بـه مومـو
زمـا او سـتا او د زړګـي ژوندونـه

د پرکـالي خوبونـو وړے يمـه
راسـره ونـه کـړې تګـي ژوندونـه

پـهٔ دې ازغنـه لاره سـتړے نـهٔ شـې
ودې خـوړم ازغـي ازغـي ژوندونـه

وګـوره دې لـوړو ژورو سـره
عزيـز پـالي عزيزولـي ژوندونـه



ګرانه یاره ستا لهٔ مخه پهٔ ما ګران دي
ګنې ستا د چم بې سره رقیبان دي

پهٔ ځو ورځو کښې ئې داسې مات رامات کړم
ستا غمونه پهٔ ما ډېر پهلوانان دي

د مابنه راوچتې شوې خورې شوې
خوشحالېږه دا وریځې د باران دي

شیخه یاره! ستا مازغهٔ پرې نهٔ چورلېږي
دا خبرې د وصال او د هجران دي

اداګانې ئې سندرې کړم شاعر یم
ګلاب مخې تول زما پهٔ سر خانان دي

کړمار زمونږ د مینې علامت دے
اسوده پرې شیربانو او یوسف خان دی

دا چې زۀ لۀ تا نه مینه وفا غواړم
دا زما خیالونه ځومره لېونیان دی

خو چې چرته وطن پال او مینه وال دی
عزیز جانه دغه ټول زما یاران دی

## د بینظیر بوټو په یاد کښې

چې کـــردار ئـــې بینظیـــر وو
چې جـرات ئـــې بـــې مثـــال وو

پـــۀ دې غونـــډه ایـشیاء کـــښې
علامـــــت د اعتـــــدال وو

کـــۀ مـــشرق دے کـــۀ مغـــرب دے
تـــول پـــۀ چغـــو چغـــو ژاړی

د غیـــــرت مجـــــسمه وه
هـــم جـــلال وو هـــم جمـــال وو



وئ هغه ډېرې ښېښتنې سترګې
غټې اوږدې نشې سترګې

د مئينانو دا دستور منمه
کوی په سترګو ښکې وعدې سترګې

قسم دے نه هېرېږی نه هېرېږی
خوږې خوږې خوږې ورې سترګې

چې په يوه کتنه زړهٔ تختوی
داسې راپېښې شولې غلې سترګې

زمونږ په چم کښې پرګنې سترګې
ستا تورېخنې خمارې سترګې

عزيزه اووايه په جار اووايه
زما د سترې ژوند دمې سترګې



چې راتېت ورته زما خودداره سر شۀ
ګرانه یاره محبت دې زورور شۀ

اوس به کوم ځاۓ وي په کومه باندې لاړ شم
خامخا به چرته ناست وي مازیګر شۀ

چې مې وکوتل احساس راکښې راویښ شۀ
شیخه اوس مې ایله عقل برابر شۀ

ستا دا وارۀ کائنات به پرې لمبه شي
کۀ یو آه مې د زړګي نه رابهر شۀ

دا اعلان پۀ بازارونو کښې پکار دے
چې عزیز د لېونیانو سرلښکر شۀ

که دې د سمې که د غرۀ ښکلي دي

توله دنیا کښې پښتانۀ ښکلي دي

خیر دې د بل چا نه پوښتنه وکه

خما برېتونه ستا بانۀ ښکلي دي

چاپخانه: د دانش خپرندويې ټولنې تخنيکي څانګه _ پېښور
Tel:+92-91-2564513/Email:danish782000@yahoo.com
www.danishpress.com